# د افغانستان مسأله
# ستونزې او د حل لارې يې

۱ – کله چې جمهور رئيس محمد داؤد په مسکو کې بريژنيف ته وويل چې افغانستان يو خپلواک هيواد دی هيچا ته اجازه نه ورکوي چې زموږ په کورنيو چارو کې مداخله وکړي ، بريژنيف په افغانستان باندې داسې گوزار وکړ چې بيا هيچا د محمد داؤد خبره تکرار نه کړه . د ثور له کودتا وروسته په تيرو شپاړسو کلونو کې د هيواد سياسي قدرت د بلواکو په لاس کې پاتې شوی دی ، دننه په هيواد کې ملي شخصيتونه يا ووژل شول يا مسخ شول ، او يا د پروپيگنډې ( تبليغ ) قرباني شول .

بلواکي ټول « خودکُش بيگانه پرست » دي . دوی د پرديو د راضي ساتلو لپاره د خپل هيواد او هيوادوالو پر ضد کار کوي

او نه پرېږدي چې په وطن کې سوله او ملي يووالی ټينګ شي . که دوی رښتونی وای نو د مسلمانانو له وږلو څخه به يې خوند نه اخيست ، د هغوی مال او شتمني به يې په زور نه اخيسته ، او د مسلمان ورور پر ناموس به يې تيری نه کاوه . البته ، واقعي او اصيل مجاهدين د دغو ګوډاګيانو اعمال ښه نه ګڼي او کرکه ترې کوي خو نور د دوی له لاسه څه نه کېږي ځکه چې بلواکي له نورو هيوادو څخه پيسې او وسلې ترلاسه کوي .

زما په عقيده اوس د دې وخت رارسيدلی دی څوك چې ځانونه اصيل او واقعي مجاهدين ګڼي هغوی له بلواکو نه خپله لاره جلا کړي . داسې هيله څرګندېږي چې واقعي مجاهدين او هيوادپال قوماندانان به د خاموش اکثريت سره چې په هيواد کې سوله ، ملي يووالی ، او انتخابی پراخ بنسته حکومت غواړي ، خپل آواز يو کړي . که دوی دا کار وکړي نو د مجاهد دروند نوم به هيڅکله سپك نشي او افغانستان به د سولې او ترقی پړاو ته ورداخل شي .

۲ - دا ثابته شوې ده چې بلواکي نه د انتقاد پروا لري ، نه د خلکو ژړا او فرياد اوري . دوی ته نصيحت کول هيڅ ګټه نه لري. « وايې ليوه ته يې نصيحت وکړ په هغه ورځ يې شل وداړل . » څوك چې له دوی نه د ترحم او زړه سوي طمع لري ، د پښتنو په اصطلاح « له زاڼو کټوري غواړي . » هغوی يوازې د زور په ژبه پوهيږي . نو اوس پوښتنه دا ده چې سوله غوښتونکی اکثريت خو زور نه لري ، د حل لاره يوازې په هغو پورې اړه لري چې وسله او پيسې ورسره وي . دا خبره قسماً درسته ده ليکن مطلق حکم

باید ونه گڼل شي . سوله غوښتونکی اکثریت کولی شي د حل لاره پیدا کړي . د دغه هدف د تحقق لپاره له دغو میتودونو څخه کار اخیستل کیدای شي :

**الف** : په اوسني وخت کې یو شمیر افغانانو له هیواد نه د‌باندې په مختلفو نومونو د سولې ټولنې جوړې کړې دي . د دغسې ټولنو شمیر ډیر زیات دی او په هیواد کې د سولې د راوستلو لپاره د هغو هڅې مثبتې نتیجې درلودلی شي . که څه هم چې د دغو ټولنو نومونه ، نورمونه ، سبکونه ، د کار میتودونه ، او د تفکر ډولونه یو له بله توپیر لري خو په هغو کې یو ګډ هدف لیدل کیږي چې هغه د سولې تأمین ، د ملي یووالي ټینګښت (او په ځینو کې decentralization ته تمایل) ، او د عمومي انتخاباتو له لارې د حکومتونو ټاکل دي . د دغو ټولنو پاسیف او غیرفعال موقفونه د پوښتنې وړ دي : آیا دوی د ځان د ساتنې لپاره ټولنې جوړې کړې دي ، آیا دوی ترفشار لاندې دي حرکت نشي کولی ، آیا دوی کومې اشارې ته ( مخصوصاً د ابرقدرت اشارې ته ) انتظار باسي ؛ آیا دوی د تفنن او سرګرمی لپاره او یا د لا زیاتې تفرقې د خپرولو لپاره ټولنې جوړې کړې دي ؟! که داسې نه وي او دوی په رښتیا له هیواد سره مینه لري نو ولې د ګډ هدف او مشترك پلاتفورم په اساس حرکت نه کوي ، یو له بل سره ولې تفاهم نه لري ، ولې عملي ګامونه نه اخلي ؟ کومې ټولنې چې عملي ګام نه اخلي د هغو شته والی له نشتوالي سره برابر دی .

زما وړاندیز دا دی کومې ټولنې چې وسایل او امکانات

لري ، همدا اوس دې د سولې له نورو ټولنو سره تفاهم پيل کړي او د ګډ کار امکانات دې تربحث لاندې ونيسي . د پخواني پاچا ، محمد ظاهرشاه ، پيشنهاد که د طرحې په توګه ومنل شي او د بشپړولو او غني کولو لپاره وړيـاندې کار وشي ، د کار د اسلاتيا لپاره به ګټور ثـابت شي . د سولې د ټولنو ترمينځ تفاهم او ګډ پلاتفورم د دې سبب کيدای شي چې ملګري ملتونه پر هغو حساب وکړي او د سوله غوښتونکي اکثريت د تمرکز او راغونډيدو لپاره زمينه برابره کړي . د سولې ټولنې بايد د اصلي مجاهدينو او د هغوی د قومانداناونو ملاتړ ترلاسه کړي . د سولې ټولنې (چې پر ځان يې نوم ايښې دی او تعهد يې کړی دی) مسؤوليت لري چې د پراخې جبهې د جوړولو په لورې حرکت وکړي .

ب : داسې ويل کيږي چې د امريکې متحده ايالتونه نور له افغانستان سره علاقه نه لري . که دا خبره رښتيا وي نو په اخلاقي او هم په پراګماتيك لحاظ د امريکې موقف د پوښتنې وړ دی . په اخلاقي لحاظ ، د امريکې متحده ايالتونو له ماکياوليستی سياست څخه کار اخيستې دی . دوی افغانانو ته يوازې د وسيلې په توګه وکتل چې روسان مات کړي مګر پخپله افغانانو ته په کوم ارزښت قايل نه شول . د افغانانو په وړاندې روسانو او امريکائيانو يو ډول چلند وکړ : کله چې روسان وپوهيدل چې نه يوازې د هند سمندر ته ځان نشي رسولی ، بلکه افغانستان نه شپاړسم جمهوريت کيدای شي او نه هم د روسيې په اقمارو کې راځي ، نو نجيب يې يوازې پريښود . همدارنګه کله چې امريکائيانو وليدل چې روسان مات شوي دي ، افغانان يې

پریښودل چې ټولې روسی او امریکایي وسلې د افغانانو د تباهۍ په لاره کې په مصرف ورسیږي . آیا د افغانانو ترمینځ د مرگ ژوبلې په وړاندې د امریکائیانو بې تفاوتي په اخلاقي لحاظ د توجیه وړ ده ؟ د افغانستان گاونډي ملکونه هم یوازې د افغانانو په کمزورتیا بسنه نه کوي ، بلکه د مطلقې تباهۍ تر سرحده پورې خپلو مداخلو ته دوام ورکوي . په دې حساب ، زموږ په مقابل کې د بدخواهۍ یا هم د بې تفاوتی له سیاست نه کار اخیستل کیږي .

له اخلاقي مسألې نه به تیر شو ځکه په سیاست کې له اخلاقو نه د ماسك په توگه استفاده کیږي . را به شو پراگماتیزم ته : که امریکه د افغانستان په وړاندې خپل اوسنې سیاست ته دوام ورکړي او د سولې او دموکراسی د پلویانو ملاتړ ونه کړي نو کیدای شي چې دغه سیاست د امریکې په زیان تمام شي . د جنوب ختیځې آسیا له هیوادو او پاکستان نه نیولی تر المغرب پورې د افراطیونو په زیاتیدونکی قدرت کې به یقیناً افغانستان تر ټولو زیات خطرناك ثابت شي ځکه چې پر افغانستان باندې د ترور او وژنې کلتور مسلط دی . دا هم څرگنده ده چې د امریکې ضد سیاست سره به د مخدره موادو د صدور او تروریزم سیاست هم ملگری وي . برسیره پر دې ، که د سیمې په نقشه کې تغییر هم رانشي د امریکې مخالف قدرتونه به تر پخوا زیات تقویه شي .

زه امریکائیان داسې خلك گڼم چې د خبرو د اوریدلو لپاره ښه او بیدار غوږونه لري ، یوه خبره که احمقانه هم ښکاري له تحلیل او انتقاد څخه پرته یې نه ردوي ، او په نتیجه گیری کې واقعبینی او پراگماتیزم په نظر کې نیسي . په امریکه کې میشته

افغانان باید امریکائیان تشویق کړي چې په افغانستان کې د سولې د تأمین په لاره کې چټک گامونه واخلي .

ج : ملګرو ملتونو تر یوې اندازې ثابته کړې ده چې په دې نړۍ کې سوله خوښوونکي او بشر دوسته انسانان هم شته . په دې اساس ، موږ هم کولی شو د سولې په تامینولو کې پر ملګرو ملتو حساب وکړو . افغانستان ته د ښاغلي محمود مستیري سفر د سولې د ارمانجنو په زړونو کې مړاوې هیلې راژوندۍ کړې . لیکن دلته ستره ستونزه دا ده چې د تنظیمونو ځینې جنګیالي مشران څه په ښکاره څه په پټه د ملګرو ملتو له پلان سره موافقه نه لري او ډیر خلك داسې فکر کوي چې د تنظیمونو د مشرانو له موافقې پرته ملګري ملتونه هیڅ کار نشي کولی . حتی د دې احتمال شته که ملګري ملتونه افغانستان ته قوا راولي ، د وسله والو ډلو تر حملې لاندې به راشي . د دې نظر پلویان دا هم وایي چې جګړه به ترهغې پورې دوام وکړي څو دغه اوسنۍ وسلې استهلاك شوې نه وي .

دغه پورتنی نظر په افراطي بڼه بیان شوی دی . زما په عقیده ، ملګري ملتونه دا قدرت لري چې د خلکو د اکثریت او د هیوادپالو قوماندانانو په مرسته او سمې لارې ته د ګاونډیو دولتو په راوستلو سره په افغانستان کې د سولې د تأمین او د پراخ بنسټه انتخابي حکومت د مینځ ته راتلو زمینه برابره کړي . که جګړه مارو ډلو ته پیسې او وسلې قطع شي د جګړې او دهشت له تورو لړو نه به د هیواد فضا پاکه شي . اوس نو وظیفه دا ده چې د مظاهرو او غونډو له لارې ملګري ملتونه دې ته راوبلل شي چې

خپلو هڅو ته دوام ورکړي او د خلکو د اکثريت له غوښتنې سره سم لويه جرګه جوړه شي .

زه په دې بحث نه کوم چې د تدارك کميسيونونه دې څه ډول وظيفې او مسئوليتونه په غاړه واخلي ، د لويې جرګې ترکيب دې څنګه وشي ، مؤقتي حکومت دې څنګه جوړ شي او کوم کارونه دې ترسره کړي . دا د راتلونکي وخت خبرې دي . په اوسني وخت کې عمده مسأله دا ده چې جګړه پای ته ورسيږي او د پراخ بنسټه انتخابي حکومت د جوړيدو لپاره د خنډونو په ليرې کولو سره ، لاره هواره شي .

# په افغانستان کې سوله يو داسې رمز دی چې تصميم نه پېژني

په ( ۱۳۵۷ ) کال کې د ثور له کودتا نه وروسته په تاشکند کې د افريقا - آسيا د ليکوالو ټولنې شلمه غونډه جوړه شوه . څرنګه چې زه پخوا هم د محمد داؤد په وخت کې د دغې ټولنې غونډې ته ورغلی وم ، نو سنايې د سابقې په اساس ماته موقع راکړه شوه چې په نوموړې غونډه کې ګډون وکړم . د ملاقات په يوه غونډه کې ټول ميلمانه ليکوال يوه شخص ته ورپېژندل کيدل . دغه شخص ماته راونه پېژندل شو خو زه يې « د انقلابي افغانستان » د ليکوالو د استازي په توګه ورته معرفي کړم . هغه له ما نه وپوښتل : په افغانستان کې وضع څنګه ده ؟ ما ورته وويل چې تراوسه وضع آرامه ده (۱) . هغه وويل : افغانان

مذهبي خلك دي ، پر خپلو عنعناتو ډیر ټینګ دی ، ډیر ژر به سخت بحران راشي . زموږ خبرې همدلته پای ته ورسیدې . زه اریان شوم د شوروي اتحاد مشران چې په دې حقیقت پوهیږي نو بیا ولې «سرو خلقیانو» ته وایي : ګرم شئ ، لا ګرم شئ او غواړي هغوی دومره ګرم شي چې هر څه وسوځوي ! (کی جی بی) ورته وایې په هر چا مو چې شك راځي وژنئ یې .

رښتیا ، کله چې سړی له یوې پیښې نه لیرې شي نو تر یوې اندازې یې په معنا پوهیږي . ورروسته ما ته دا فکر پیدا شو چې روسانو غوښتل په افغانستان کې داسې بحران راشي چې د دوی لپاره د مداخلې زمینه برابره شي ؛ که نه هغوی پوهیدل چې د ثور کودتا یوه نظامي کودتا وه ، د خلکو ملاتړ ورسره نه و باید په ډیر احتیاط یې ګامونه پورته کړې وای . یوه ورځ د ۱۳۵٦ کال په ژمي کې میراکبر خیبر ماته وویل چې د انقلابي ګوند لپاره کودتا خیانت دی ، کله چې خلك انقلاب ته تیار نه وي ، کودتا له ناکامۍ سره مخامخ کیږي او انقلاب شاته غورځوي . په دې وخت کې خلقیان د دې په ځای چې د فیډل کاسترو په شان آرام پر مخ ولاړ شي ، غټ غټ ټوپونه یې واچول . د دوی په سیاسي قاموس کې له مخالفې طبقې سره روغه جوړه خیانت بلل کیده . د دوی په سیاست کې د سولې ګنجایش نه و . ځینې خلك په دې باور دي چې حفیظ الله امین د کودتا د ناکامۍ په درك کولو سره په پټه د ضیاءالحق سره ځینو توافقاتو ته رسیدلی و . اما پخوا له دې چې آغا شاهي کابل ته راشي ، حفیظ الله امین د ( کی جی بی ) له خوا ووژل شو او ببرك کارمل یې د افغانستان د واکمن په توګه

وتاکه . د سولې لومړی کوښښ ناکام شو . کارمل په لومړي سر کې د سازش او اغماض ځينې جالب حرکتونه وکړل : بنديان يې خلاص کړل او ( اصول اساسي ) کې يې د عقيدې او بيان آزادي ، د گوندونو آزادی د کور محرميت ، د مراسلاتو محرميت ، د مسافرت آزادي او داسې نور ثبت او اعلان کړل . ډير وخت نه و تير شوي چې د ( اصول اساسي ) پر ضد کارونه يې د افراط مرحلې ته ورسول . د کورونو په حريم پاندې تيري ورته يو ډير معمولي کار بريښيده . کوم کور ته به چې د عسکر گريز يا په بل نامه په زور داخل شول نو د کور دننه به يې هر څه لټول شخصي صندقونه به يې خلاصول ، د کټ بسترې به يې لاندې راغورځولې الماری به يې خلاصولې او جيبونه به يې لټول ، لنډه يې دا چې د دوی په وړاندې انساني کرامت او محرميت هيڅ ارزښت نه درلود . د گوندونو آزادی او د مسافرت آزادی خو د دوی د بادارانو په وطن کې هم نه وه ، او مراسلات خو د جاسوسی لپاره مهمه وسيله وه . د دوی د وژلو ، وحشيانه شکنجو ، توهين او سپکولو د پاليسی په نتيجه کې پنځه نيم مليونه خلك له وطن نه وتښتيدل ، ځينې دننه په وطن کې ليږديدلو ته مجبور شول ، تقريباً دوه مليونه افغانان ووژل شول او يا معيوب شول . له دې ټولو سره سره دوی شعار ورکاوه چې « خلك او گوند سره يو دی . » پرچميانو د برژنيف د پراختيا غوښتنې دکتورين په اساس ، د روغې جوړې له اصطلاح سره حساسيت درلود ځکه په سوله کې د پراختيا غوښتنې داعيه په ښه توگه سرته نه رسيږي .

د رواني پيړی په اتيايمو کلونو کې د پخواني شوروي اتحاد

# جنگ داخلی در افغانستان
# چگونه پایان خواهد یافت ؟

## الف - جنگ داخلی در افغانستان غالباً به یکی از این طرق خاتمه خواهد یافت :

۱ - آنانی که جنگ را آغازیده اند پس از انقضای مدتی ، سازش وتوافق را نسبت به ادامهء جنگ مفیدتر میدانند ودرنتیجهء آشتی وکمپرومایز آنان ، جنگ داخلی نیز به پایان میرسد .

۲ - یکی از طرفین مخاصمه بر دگران چیره میشود وشعله های جنگ خاموش میگردد .

۳ - حامیان خارجی که به جنگجویان کمکهای مالی ونظامی میکنند ، ادامهء جنگ را بی ثمر وغیرمفید تشخیص داده بین خود تعهد میکنند که از فرستادن پول واسلحه وادامهء تحریکات جنگ

نوی زعامت د دې حقیقت منلو ته غاړه کیښوده چې د برژنیف «پرمختللی سوسیالیزم» په نړیوال ډګر کې د سیالۍ ، پرمختګ او پراختیا پوتنسیال نه لري . د ګرباچف د نوي دکتورین په نتیجه کې په شوروي اتحاد کې یو کنترول نه منونکی بدلون راغی . فکري اختناق ، دګماتیزم ، دیکتات او د نه پخلا کیدونکی دښمن ایماژ له منځه ولاړل . هغه ګوندونه چې د مسکو له خوا په جوړو شوو مصنوعي پښنو ولاړ وو ، په دې وپوهول شول چې باید د خپلو پرابلمونو د حل کولو لپاره وطني لاره پیدا کړي . د خلق دموکراتیك ګوند غړو ته د روغې جوړې مفکوره ناآشنا وه خو د مسکو د فشار په نتیجه کې ډاکتر نجیب چې د رادار په شان یې نوي حرکتونه تشخیص کولی شول ، د ګوند مشر وټاکل شو . د ملي روغې جوړې تګلاره ومنل شوه او ګوند پرڅان د (وطن) نوم کیښود چې البته د دغه ګوند لپاره مناسب نوم نه و .

ډاکتر نجیب د روغې جوړې د تګلارې د بریالیتوب لپاره هر اړخیز کوششونه وکړل ، نوی اساسي قانون یې تصویب کړ او بیا یې لا نور هم ترمیم کړ . له هر شي نه چې د کمونیزم بوي راتلو هغه یې پټ یا ورك کړ . دغو اقداماتو څه ګټه ونه کړه .

لومړی په دې دلیل چې خلکود ګوند اصلي څیره پیژنده او د دوی پر هلو ځلو یې تمسخر کاوه .

دوهم دا چې ګوند د خپل قدرت وروستی شیبې تیرولې ، سور پوځ له افغانستان نه وتلی و ، او ګرباچف د کابل رژیم سره مؤثره مرسته نشوه کولای . پخپله د ګوند غړی په دې پوهیدل

چې د زوال وخت یې راغلی دی باید په رشوت او اختلاس صرفه ونه کړي . نو هیڅا د یوه ماتیدونکي او پر شا تلونکي گوند له غړ سره همنوايي نشوه کولای .

دریم دا چې تنظیمونو د جگړې له دوام څخه گټه کوله :

پیسې او وسلې یې ترلاسه کولې او هر چیرته به یې درناوی کیده؛ د دوی د نظامي او مالي مرستو سرچینې نه وچیدونکې وې په داسې حال کې چې د مقابل طرف پشتوانه د کمزورتیا په لور روانه وه .

په دې ترتیب گورو چې د روغې جوړې غړ ته لازمه پاملرنه ونشوه او ډیرو خلکو فکر کاوه چې دا غړ یوازې د (وطن) گوند د نجات لپاره پورته شوی دی . دا کوشش هم ناکامه شو .

د ژنیو تړون هدف په افغانستان او سیمه کې هر اړخیز سوله نه وه ځکه چې په غونډه کې د کابل رژیم د مخالفانو استازی گډون نه درلود ، بلکه اصلي هدف دا و چې د سره پوځ لپاره د ختو پوزه جوړه شي . مسکو کوشش کاوه داسې وښیي چې گویا سره پوځ ماته نه ده خوړلې ، بلکه په افغانستان کې د سولې د شرایطو د برابرولو لپاره په رضاکارانه توگه وزی . امریکائیانو د ژنیو تړون په لاسلیك کولو سره څو اړخیزه هدفونه ترلاسه کړل : سور پوځ له افغانستان نه ووت ؛ گرباچف یې خوشحاله کړ ؛ د کابل رژیم سقوط یې اسانه کړ ؛ او بالآخره یې په ویتنام کې د خپلې ماتې انتقام واخیست . د ژنیو تړون چې د کوم مقصد لپاره په نظر کې نیول شوی و ، هغه ترسره شو .

د سره پوځ له وتلو وروسته امریکائیانو د افغانستان د راتلونکی په باب د هیڅ ډول معقولیت نښې ونه ښودلې . داسې

ښکاریده چې نور نو د امریکائیانو په سیاسي نقشه کې د افغانستان په نوم کوم هیواد نشته . حتی یو شمیر امریکایي دیپلوماتانو په ډاګه وویل چې د کابل رژیم له سقوط نه وروسته د امریکې د متحده ایالتونو حکومت له افغانستان سره علاقه نه لري . زه پخپله دغه نظر نه تاییدوم خو پر دغه موضوع به د بینن- سیوان له پلان نه وروسته خبرې وکړو .

د بینن سیوان پلان زما په نظر له لیکل کیدلو نه مخکې په ماتې محکوم و ، ځکه دا څنګه امکان لري چې جهادي تنظیمونه دې د برې په درشل کې د جهاد ثمره او خپل قدرت یو څو تنو «کم خرج بالانشین» ته پریږدي ؟ اکثر خلک په دې پوهیدل چې جهادي تنظیمونه لا په خپلو منځو کې یو بل ته غاړه نه ږدي نو بیطرفه تکنوکراتانو یا پخوانیو بیروکراتانو ته به څنګه قدرت ورتسلیم کړي ؟!

یو شمیر دموکرات روشنفکرانو د ملګرو ملتو له پنځه فقره- ییز پلان څخه چې په افغانستان کې د سولې د تحقق لپاره جوړ شوی و ، ملاتړ وکړ هغه هم په دې خاطر چې په سیاست کې تقریباً هیڅ کار ناممکن نه دی . د بینن سیوان د پلان په ناکامی کې (کی جی بی) هم ونډه درلوده ځکه روسانو د تنظیمونو له یوه قوي اړخ سره د ائتلاف له لارې بیرته په افغانستان کې نفوذ کولای شو . دوی پوهیدل چې د نجیب ساتنه ناممکنه ده باید په بدل لباس کې خپل هدف ترلاسه کړي . روسانو د ائتلاف په برخه کې پخوا هم تجربه درلوده نو د بینن سیوان پلان د ناکامولو په برخه کې ځینو قوماندانانو سره د هغوی سازش نه تصادفي پیښه وه ، نه لومړنی

او نه وروستنی . روسانو چې د ۱۳۵۸ کال د جدي له شپږمې نیټې نه « د ملیتونو د مسألې » په نوم کومه طرح درلوده د هغې د عملي کولو لپاره اوس هم په جدي توګه کار کوي . روسان که د دروازې له لارې ووتل د کړکۍ له لارې بیرته افغانستان ته راغلل. روسان د خپل پراختیا غوښتونکې سیاست له کبله هیڅکله په افغانستان کې د ملي یووالي پلویان نه وو . له پخوانیو ځینو قوماندانانو سره د روسانو مرستې زموږ د ملي هویت او د خاورې د تمامیت په برخه کې ډیرې خطرناکې نتیجې درلودلې شي .

ځینې کسان فکر کوي چې روسیه او امریکا د یورپ خواته متوجه دي ، افغانستان یې هیر کړی دی . په دې کې شك نشته چې روسیه غواړي په راتلونکی متحده اروپا کې ستر نقش ولوبوي . روسیه یوازې جرمنی خپل سیال ګڼي او فکر کوي چې د اقتصادي زیرمو او اتنیکي پلویانو په مرسته به په پای کې لومړی درجه قدرت ترلاسه کړي . امریکا به د یورپ او جاپان سره په اقتصادي رقابت کې د کمونیزم پرځای [illegible] نوي قطب سره مخامخ شي چې په هغه کې به بیا روسیه تیاره کړې وي او د پخواني شوروي اتحاد ځای به ونیسي .



سره له دې په نړۍ کې نور هیوادونو هم شته ، لکه چین او اسلامي هیوادونه چې په دې وروستیو هیوادو کې افغانستان هم یو مهم موقعیت لري . د امریکې له خوا د افغانستان هیرول او یا د هغه په وړاندې بی تفاوته پاتې کیدل ، زما په نظر ، په سیاست پوهنه کې جواز نه لري . امریکائیانو چې په افغانستان کې د سولې او دموکراسی په خاطر جدیت نه دی ښودلی علت یې

دا دی چې امریکایي پراگماتیزم د انتظار حالت غوره گڼي . د روسيې او امریکې ترمنځ د خوږو مناسباتو شپې ورځې ترشا پاتې شوې دي . د پخواني شوروي اتحاد په جمهوریتونو کې په مجموع کې پخواني کمونستان حکومت کوي . روسیه د خپلواکو هیوادو د کامنویلت ( C. I. S ) له لارې په آسیا کې هم خپلې گټې پالي . نو په داسې حالت کې امریکه له روسيې سره د خپلو مناسباتو په پام کې نیولو پرته ، د افغانستان د قضیې په برخه کې یو اړخیز اقدام نشي کولای . د افغانستان گاونډي هیوادونه او عربستان او هند هم په افغانستان کې د راتلونکی نظام په باب له ځانه سره پلانونه یا اندیښنې لري چې امریکه یې باید په حساب کې ونیسي . برسیره پر دې ، اووه لس کاله کیږي چې امریکاییان په افغانستان کې چا نه دي لیدلي . گمان نه کیږي چې د هغوی د پښتو ایښودلو لپاره به لارې هوارې شوې وي . ښایي د امریکې لپاره دا مسأله هم طرح وي چې په افغانستان کې د وسله والو جگړه مارو خپلسری او انارشی به د دوی پلانونه بې ارزښته کړي .

له [illegible] څخه به دا نتیجه گیری محفوظه وي که وویل شي : امریکه په افغانستان کې د څه کولو اراده لري خو نه یې شي کولای او د پښتنو په اصطلاح : « شیخ فریده ، خوله پټه بهتري ده » .

په افغانستان کې سوله یو داسې رمز دی چې تصمیم نه پیژني . وسله وال جگړه ماران چې د قدرت لیونیان دي د داسې سولې پلوي کوي چې هره یوه ته د زمري برخه پکې ورسیږي .

. هغوی یوازې د زور له کلمې سره اشنا دي او د زور په ژبه پوهیږي . د افغانستان سوله غوښتونکی اکثریت باید ترهغې پورې انتظار وباسي چې یو لورې پر نورو غلبه ومومي .

څوك چې د سولې د راوستلو قدرت لري هغوی سوله نه غواړي ، بلکه د قدرت د انحصار په فکر کې دي . څوك چې سوله غواړي د هغوی غږ بې ارزښته دی ځکه چیرته چې وسله خبرې کوي منطق نه اوریدل کیږي .

# سوله او دموکراسي په افغانستان کې

پتمنو خویندو او ښاغلو ورونو ! د نن ورځې د سیمینار عنوان دی : ( سوله او دموکراسي په افغانستان کې ) . له بده مرغه ، اوس په افغانستان کې نه سوله شته او نه دموکراسي . په دې حساب ، دا یو ارمانیز سیمینار دی چې د یوه ارمان یا ایډیال د ترسره کیدو لپاره جوړ شوی دی . د دې مقالې تیزس دا دی چې سوله او دموکراسي په افغانستان کې ناآشنا پدیدې نه دي او په نژدې راتلونکې کې هم احتمال شته چې یوځل بیا په هیواد کې د سولې او دموکراسی لمر وځلیږي .

لومړی به د افغانستان په معاصر تاریخ کې سیاسي جریانونو ته یوه لنډه پیلوتې کتنه وکړو او بیا به د ماضي په رڼا

کې راتلونکی وخت وګورو .

غالب احتمال دا دی چې په افغانستان کې به ایډیالوجیکي سیاست له سید جمال الدین افغاني څخه پیل شوی وي . د ده د مبارزې عمده هدف دا و چې شرقي ملتونه په تیره اسلامي دولتونه د فعال او روشنفکرانه اسلام له لارې د لویدیځ استعمار په وړاندې قیام وکړي . د افغاني سید دښمن یوازې لویدیځ استعمار نه و ، بلکه عیاش او محافظه کاره واکمنان او قشریون هم د ده پرضد دریدلي وو . په هغه وخت کې قشریون له ساینس او ترقي څخه ویریدل ، دنیوي چارو ته یې په سپك نظر کتل ، او نوي شیان یې د بدعت په نامه غندل . د افغاني سید جمال الدین په پوهه اسلام یوازې د شعایرو او مناسکو مجموعه نه ده ، بلکه هغه د نظري او عملي ژوند لاره ده او یو داسې ټولنیز نظام دی چې هر ډول فلسفي اجتماعي ، سیاسي ، اقتصادي او فرهنګي پرابلمونو ته ځواب ویلي شي . اما افغاني سید د زیات وخت لپاره په وطن کې پاتې نه شو او د څراغ په شان رڼا یې نورو ځایونو ته لاړه او خپله شاوخوا یې تیاره پاتې شوه . حتیٰ محمود طرزي چې د سید جمال-الدین افغاني افکار یې له پاتریوتیزم ( هیوادپالنې ) سره ترکیب کړل د افغاني سید افکار یې له خارج نه د ځانه سره افغانستان ته یوووړل . که په افغانستان کې د افغاني سید افکارو له مخکې نه یو څه نفوذ کړی وای ښایې چې د امیر امان الله خان ریفورمونه (اصلاحات) له ماتې سره نه وای مخامخ شوی . که څه هم علامه سید جمال الدین افغاني د دموکراسی تر عنوان لاندې مبارزه نه ده کړې خو د ده افکار متعصبو قشریونو ، محافظه کاره طبقو ، او د

آزاد فکر مخالفانو ونه زغمل .

په افغانستان کې د سیاسي مبارزې لومړنی تشکل د سراج ـ الملة والدین امیر حبیب الله خان د پاچهی په زمانه کې مینځ ته راغی . دغه تشکل د پراخې جبهې بڼه درلوده ځکه چې په هغه کې د تدریجي تحول پلویان او راډیکال عناصر سره یوځای شوي وو . د دې مشترك پلاتفورم دا و : د مشروطیت خپلواکی او موډرنیزیشن لپاره مبارزه . مشروطیت په واقعیت کې د دموکراسی مفهوم درلود . که موږ وغواړو چې د دغه وخت سیاسي جریانونه چې په هغو کې د قومیت ، ژبې ، مذهب او نژاد توپیر ته پاملرنه نه کیده د سیاسي فلسفې له کومې اصطلاح سره وتړو ، کیدای شي چې هغه د لیبرال دموکراسی سریزه وګڼو . لیبرال دموکراسی د صنعت ، تجارت او تکنالوجی له ودې سره پیوستون درلود .

په دې ترتیب ګورو چې د افغانستان په تاریخ کې لومړنی متشکله سیاسي مبارزه د دموکراسی لپاره مبارزه وه . د دغه وخت سیاسي جریان زیات دوام ونه کړ . ویل کیږي چې ځینو رادیکال عناصرو د کودتا لپاره کار کاوه او محافظه کارانو ته پلمه په لاس ورغله چې د سیاسي نهضت په مخ کې خنډونه واچوي .

د امیر امان الله خان د پاچهی په زمانه کې هم یو ګوند جوړ شو چې د ( حزب استقلال وتجدد ) په نامه شهرت لري . خو ښکاره چې دغه ګوند د پاچا له خوا جوړ شوی و ، او د سیاسي پلورالیزم ښکارندوی نه و ، نو ځکه د دموکراسی تر عنوان لاندې نه راځي . په دې کې شك نشته چې د اماني عصر تجدد له

دموکراسی سره تړلې و او د هغه وخت روشنفکرانو د دموکراسی لپاره کار کاوه .

امیر حبیب الله کلکانی که څه هم د یوه فرد په توگه د ځینو ښو افغاني صفتونو خاوند و ، خو د یوه پاچا په توگه نه یوازې د دموکراسی په مفهوم نه پوهیده ، بلکه د عصري ژوند او تمدن له مظاهرو سره یې هم مخالفت کاوه .

اعلیحضرت محمد نادرشاه چې د سیاسي پوهې او پراخې تجربې خاوند و ، خپله ټولنه یې ښه پیژندله او د ترقی داسې نسخه یې وړاندې کړه چې د ټولنیزو ناروغتیاوو علاج وکړي . د ده د اداري پرنسیپ دا و چې «سره ټول یې کړه کنترول یې کړه. » د دیني علماوو او تحول غوښتونکو روشنفکرانو ټولنې جوړې کړې او تاجران یې هم په شرکتونو کې په کار واچول . کوم اصلاحات چې اعلیحضرت امیر امان الله په ډراماتیك ډول پیل کړل ده هغو ته په آرامه توگه دوام ورکړ . د ده د پاچهی دوره لنډه وه نو د دموکراسی د معرفی کولو طریقه یې څرگنده نه شوه .

د اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د پاچهی په دوهمه لسیزه کې سیاسي فعالیتونو ته اجازه ورکړه شوه . ځینو کسانو د هغه وخت صدراعظم ، شاه محمود خان ته « د دموکراسی پلار » لقب ورکړ. خو (د دموکراسی پلار) لا ژوندی و چې دموکراسي یتیمه شوه . په دې کی شك نشته چې دغه دموکراسی د افغانستان په شرایطو کې ارزښتناکه وه او د سیاسي شعور په لوړولو کې یې څرگنده ونډه درلوده . ځینې روشنفکران د تدریجي تحول پلویان وو او کوښښ یې کاوه چې دموکراسی باید ولایاتو ته هم ولاړه شي ،

صرف نظر میکنند . به اغلب احتمال حامیان خارجی برای طرفهای تحت الحمایهء خویش قبلاً سهم لازمی را در حکومت آینده ریزرف مینموده باشند .

٤ - سازمان ملل متحد به اثر فشارهای گونه گون وبا درنظر داشت وظایف داخلی آن سازمان ، بر فریقین درگیر درجنگ اعمال نفوذ نموده ، بااستفاده از تاکتیك چوب وزردك ( تهدید وتطمیع ) آنان را به قبول راه حل سیاسی راضی میسازند .

٥ - وضع موجود باتغییرات اندك دوام میکند ؛ جنگها کاهش مییابد وبخشهایی از کشور به تدریج ساحه نفوذ کشورهای خارجی قرار گرفته ، انتظار سرنوشت را میکشند . این وضع هنگامی به وجود میآید که هیچ یکی از طرق بالا درساحهء عمل تطبیق نگردد .

## ب - عواملی که در تأمین صلح قابل محاسبه اند :

١ - تنظیمهای مجاهدین سابق که خود را وارث بالاستحقاق رژیم کمونستی میدانند ومانند آنها ادعا دارند که ما به زور تفنگ قدرت را به دست آورده ایم ، افغانستان ملکیت شخصی ماست وغیر از مجاهدین تفنگ به دست ، دگر کسی حق ندارد دربارهء سرنوشت کشور حرف بزند وحتی فکر نماید . واقعیت امر اینست که هیچ قدرتی روی زمین ، آنها را نادیده گرفته نمیتواند . اینها غیر از زبان تفنگ زبان دگری را نمیفهمند . یکی از اشتباهات چشمگیر ښاغلی محمود مستیری نیز همین بود که امر خطیر تشکیل یك اردوی ملی را به تعویق انداخت . باداشتن

ټول خلك ورسره اشنا شي ، او د ژوند لاره وګرځي . دوی د افراط مخالف وو ، د سراجیه عصر رادیکالیزم یې غانده او هغه یې « بې وخته آذان » ګاڼه . لیکن نورو به د تدریجي تحول پلویان د دربار نوکران ګڼل . د دوی په نظر ، دا یوه قلابي دموکراسي وه چې واکمنه طبقه غوارې په دې وسیله خپل دوستان او دښمنان وپیژني . هغوی له « ورکړې شوې دموکراسۍ » سره مینه نه ښودله خو له هغې نه یې ګټه اخیسته . دوی به تبلیغ کاوه چې واقعي دموکراسي هغه ده چې په زور واخیستله شي نه هغه چې ورکړه شي . له همدې لامله ، هغوی خلك د « واقعي دموکراسي » د ګټلو لپاره چمتو کول . په دې ترتیب په عمده توګه دوه ډوله تمایلات لیدل کیدل . یوه ډله له حکومت سره چې د شاهي کورنۍ په لاس کې و ، د زړه له کومي مخالفه وه . په ظاهر کې د دوی د مخالفت عمده دلیل دا و چې واکمنه طبقه له اندازې زیاته محافظه کاره وه . په باطن کې دوی یو څه اتنیکي او یا مذهبي نارضایتي هم درلوده خو کوشش یې کاوه چې په دغه نامه سند ورنه کړي . دغې ډلې د ( وطن ) او ( ندای خلق ) په نامه جریدې چلولې . د ( وطن ) د جریدې ترشا د میر غلام محمد غبار او میر محمد صدیق فرهنګ په شان تکړه مؤرخان ولاړ وو او (ندای خلق) د نامتو سیاسي مبارز ډاکتر عبدالرحمن محمودي غږ پورته کاوه .

د محصلانو اتحاد یه چې ځینو غړیو یې دغې ډلې ته ورته تمایلات لرل .

بله ډله چې د ( ویښ ځلمیانو ) په نامه مشهوره وه او

(انګار) او ( اولس ) جریدې یې چلولې . په مجموع کې یې له حکومت سره ښه مناسبات درلودل . دوی د هیواد په کورنیو چارو کې له حکومت سره د درجې په لحاظ توپیر درلود نه د نوعیت او ماهیت له مخې . لیکن د دولت په خارجي سیاست کې دوی د بشپړې همکارۍ ونډه درلوده . د ویښ ځلمیانو حامی عبدالمجید- زابلی و . زما په پوهه ، زابلی چې یو ملي تاجر او معتدل ناسیونالیست و ، د لیبرال دموکراسی د تعمیم لپاره یې د پردې ترشا ډیر زیات خدمت کړی دی . د ده وفادار شاګرد نور محمد- تره کی وروسته انقلابي لاره غوره کړه او کوم وخت چې زابلی هغه هند ته استولی و هلته له نویو مفکورو او نویو اشخاصو سره اشنا شو . د ویښ ځلمیانو په ډله کې ځینې مشهور فرهنګي شخصیتونه ، لکه علامه حبیبي ، ګل پاچا الفت ، عبدالرؤف بینوا او داسې نور شامل وو . په کندهاري روشنفکرانو کې رادیکال عناصر زیات وو .

د محمد ظاهرشاه د دوهمې لسیزې دموکراسی هم د اصلي مخالفانو په بندي کولو او اکثرو ویښ ځلمیانو ته د لوړو چوکیو په ویشلو پای ته ورسیده . داسې تبلیغات هم اوریدل شوی دی چې د ویښ ځلمیانو ځینې غړي یې په خارج کې په لوړو پُستونو کې په مقررولو سره تبعید کړل (!) د حکومت دغه سلوک وروسته ځینو لږه کیو ته پلمه په لاس ورکړه چې د ځینو نورو سره په ګډه سیاسي فعالیت ونه کړي .

په شاه محمود خان پسې محمد داؤد صدراعظم شو . زما په فکر ، هغه د روشنفکرانه او عادلانه دکتاتوری طرفدار و .

سردار داؤد لیبرال دموکراسی د یوه ضعیف دولت لپاره چې په اقتصادي لحاظ هم کمزوری و ، یو لوکس او تجملی کار گاڼه چې په عمل کې یې له گټې څخه زیان ډیر دی . ( دا زما شخصي تعبیر دی د محمد داؤد اصلي نیت ما ته نه دی معلوم . )

د محمد ظاهرشاه د پاچهۍ په تخلویښتمو کلونو کې دموکراسی د اساسي قانون په واسطه تسجیل او تضمین شوه. په دې وخت کې روشنفکران د ( ایزم - ism ) په ژبه سره غږېدل د کمونیزم او کاپیټالیزم ترمینځ سخته مبارزه روانه وه . د دغه وخت اکثر سیاسي گروپونه د هغو جریدو په نامه یادیدل چې دوی خپرولې ، لکه : خلقیان ، پرچمیان ، شعله یان ، او افغان ملتیان . د دغه وخت له دموکراسی نه د دموکراتانو په نسبت چپو گوندونو زیاته استفاده وکړه . چپو گوندونو د دې لپاره دموکراسی غوښته چې دموکراسی تر ستوني ونیسي او مړه یې کړي . په پای کې دغه دموکراسی د محمد داؤد په کودتا سره پای ته ورسیده . اوس پوښتنه دا ده چې په افغانستان کې دموکراسی ولې د مد او جزر شکل در ید ، کله به راپورته شوه او بیا به پرېوته ؟

زما په څوهه ، لومړی دلیل دا دی چې دموکراسي یوه پشتوانه او تکیه گاه غواړي . دغه پشتوانه یوه توانمنده منځنۍ طبقه ده چې د انقطاب د پیاوري کیدو او تصادم مخه نیسي . په افغانستان کې بی پشتوانې دموکراسی مینځ ته راغله .

دوهمه خبره دا ده چې دموکراسي د ژوند لاره ده پرسیره پر اقتصادي پشتوانې باید فرهنگي پشتوانه او پس منظر هم ولري .

شرقي استبداد ، سياسي اختناق ، د فلسفي پس منظر نشتوالی ، دگماتيزم او فکري تحجر ، اقتصادي کمزورتيا ، د خارجيانو په مقابل کې الرژی ، د لوړې طبقې محافظه کاری او بې تفاوتی ، د قشريونو ډير زيات نفوذ ، او د افغاني دولتونو د انزوا ( Iso- lation ) سياست هغه عوامل دی چې د دموکراسی د خپريدو مخه يې نيوله .

دريم دليل دا دی چې د دموکراسی له اعلانيدو سره دولت د ځان لپاره گوند جوړ نه کړ چې له يوې خوا د افراطي او راديکالو عناصرو سره مقابله وکړي او له بلې خوا خلکو ته يو پيغام ، يوه دورنما ، يا يو ايډيال وړاندې کړي . نو د گوند ، جمعيت ، او يا نهضت نومونه د مخالفت ( اپوزيسيون ) په مفهوم استعماليدل . په دې اساس ، د اپوزيسيون په لاس کې توره وه او دولت ډال (سپر) نه درلود چې له ځانه دفاع وکړي . په هغه وخت کې چې اپوزيسيون ډير مخکې تللې و ، يو چا د دولت په نامه گوند جوړاوه خو په عمل کې دغسې يوه گوند تبارز ونه کړ .

څلورم دليل دا دی چې د څلويښتمو کلونو په دموکراسۍ کې خارجي ايډيالوجۍ په ډير قوت سره مينځ ته راغلې . د دغو خارجي ايډيالوجيو ترشا خارجي قوتونه هم ولاړ وو . د خارجي دولتونو ترمينځ سيالۍ به د افغاني سياست بازانو په هينداره کې په وضاحت سره ليدل کيده . سياسي بلواکو ورځ په ورځ قوت پيدا کاوه او ملي شخصيتونه به تجريديدل . ښايې دا پوښتنه راولاړه شي چې د امريکې متحدو ايالتونو حکومت کولی شول د شوروي اتحاد او چين سره د سيالۍ او د دموکراسی د استحکام په خاطر د

چپو گوندونو په مقابل کې د ليبرال دموکراتانو گوند جوړ او تقويه کړي . دا به احمقانه دليل وي که ووايو چې امريکې نه غوښتل د افغانستان په کورنيو چارو کې مداخله وکړي . دا به هم زياته خوشباوري وي که ووايو چې امريکه په دې پوهيده چې يوه ورځ به د افغانستان له لارې د ويتنام د ماتې انتقام واخلي او په دې اساس يې خلقيانو ته موقع ورکړه چې کودتا وکړي . بيرته به خپلې خبرې ته راشو او هغه دا چې د افغانستان دموکراسی د دې سبب شوه چې خارجي لاسونه راوغځيږي او رښتونی هيواد پالونکی تجريد کړي . محمد داؤد هم ښايې په همدې علت کودتا وکړه چې دغې وضعې ته خاتمه ورکړي او د يوې ملي ايډيالوجی لپاره ابعاد جوړ کړي . دا هم بايد هيره نه کړو چې د کمونستي افکارو په پياوړتيا کې يوازې خارجي لاسونو کار نه دی کړی ، بلکه قشريونو هم اکثر ځوانان د کمونيزم ځولۍ ته وروغورځول ځکه دوی به ويل چې کيميا سحر دی ، موټر سحر دی ، او ساينس کفر دی .

پنځم دليل دا دی چې د دموکراسۍ په وروستې لسيزه کې اقتصادي فعاليتونه ډير کمزوري وو . د دموکراسی پلويانو د خلکو د ژوند د ښه کيدو لپاره کوم پيغام نه درلود په داسې حال کې چې د ( کيڼ ) لاس گوندونو پيغامونه او شعارونه درلودل .

شپږم دليل دا دی چې اکثر دموکراتان د مړې گيډې سياست کوي ، جدي او فعال خلك نه دي . د اعليحضرت محمد ظاهرشاه د سلطنت په وروستيو کلونو کې يو شمير روشنفکرانو غوښتل د سوسيال دموکرات په نامه گوند جوړ کړي . ځرنگه چې دولتي رجال په يوه يا بله پلمه گوند ته رانغلل ، نوموړي روشنفکران

د ګوند له جوړلو څخه تیر شول یعنې دوی د ډیر لږ ریسک (risk) منلو ته هم حاضر نه وو . البته ، دا ډیره مشکله ده چې سړی په عین وخت کې هم غازي شي ، هم شهید شي او هم غنیمت کور ته راوړي .

دا وو د دموکراسی د مد او جزر ځینې دلایل . د پورتنیو خبرو په نتیجه کې ویلې شو چې دموکراسي په افغانستان کې تاریخي سابقه لري ، کومه نوی او نااشنا پدیده نه ده . دموکراسی د افکارو په روزنه ، د فرهنګ په خپرونه ، د سیاسي شعور په لوړونه ، د امنیت په ساتنه کې مهم نقش درلودلی دی . محمد-داؤد چې د جمهوري ریاست په دوره کې دموکراسی وځبله له امنیتي پرابلمونو سره مخامخ شو .

د ثور له کودتا نه تر نن ورځې پورې ټولو ته په سلو کې سل ثابته شوې ده چې د دموکراسی دوره د کمونستي او تنظیمي حکومتونو په نسبت آرامه دوره وه . که په وطن کې یو څه فرهنګي او تعمیري کار شوی دی د دموکراسی له دورې سره اړه لري . د قتل ، شکنجې ، تحقیر ، چور او چپاول ، او بیګانه پرستی نظامونه هیڅکله د سولې او دموکراسی له نظام سره د مقایسې وړ نه دي . دا د تعجب خبره نه ده چې په افغانستان کې پخواني کمونستان او اوسني جګړه مار یو بل ته د دوستۍ او همکارۍ لاس ورکولی شي خو له دموکراتانو سره نه پخلا کیږي ، دا ځکه چې د دواړو د اداري طرز او د کار میتودونه سره ورته دي ، د فکر د آزادۍ مخالف دي ، انحصار غوښتونکي دي ، وایي یو څه او کوي بل څه ، د ملت ارادې ته درناوی نه کوي ، د

مرگ ، شکنجې او تعذيب قاصدان دي . د پرديو په زور پرملت باندې حکومت کوي ؛ د ملت گټې تر خپلو گوندي گټو قربانوي او د دموکراسی مخالف دي . اوس به هغه امکانات وپلټو چې د سولې او دموکراسي د تأمينولو لپاره ورباندې حساب کولی شو . زما په فکر ، سوله او دموکراسي به د آسمانی مائدې په څير پخپله رانشي . د سولې او دموکراسی لپاره حرکت په کار دی . په حرکت کې برکت دی . که دا اکثريت خاموش لا نور هم خاموش پاتې شي نو دوی له خپل ځان سره جفا کوي . حضرت- ابوبکر صديق (رض) فرمايلي دي : « هغه قوم چې ستمکش وي هيڅکله به ستمگر په دوی کې ورك نشي » . سيد جمال الدين- افغان وايې : « زه له ظالم او مظلوم دواړو څخه نفرت لرم . له ظالم څخه د هغه د ظلم په سبب او له مظلوم څخه په دې سبب چې ولې يې د ظالم ظلم ته غاړه ايښې ده » . نو د سولې او دموکراسی لپاره له هر څه مخکې يو حرکت او غورځنگ په کار دی . ځانگړی افراد چې کوم گوند يا سياسي مؤسسې غړيتوب نه لري بايد د سولې له غورځنگ سره خپل آواز يو کړي . خاموش اکثريت بايد گونگه روژه ماته کړي ځکه چې فضا بالکل تياره ده . کومې سياسي ټولنې چې په سوله او دموکراسی عقيده لري هغوی بايد د پراخې جبهې د جوړولو په لورې گامونه واخلي او له نورو ټولنو سره د تفاهم له لارې د گډ پلاتفورم لپاره زيار وباسي . اوس هم کـه څـوك په کار لاس پورې کـړي ناوخته نه دی .

دوهمه دا چې د افغانستان مسأله د ملگرو ملتو له صميمانه مرستې پرته نه حل کيږي . په دې کې شك نشته چې افغانان

خپل مسایل پخپله حل کولی شي خو په دې شرط چې خارجي لاسونه پکې کار ونه کړي . لیکن په اوسني حالت کې ټولو ته ثرګنده ده چې جګړه مار له نورو دولتونو څخه وسلې او پیسې ترلاسه کوي . په دې صورت کې د ملګروملتو مرسته د افغانستان د مسألې د حل لپاره یو لازمي شرط دی . البته موږ توقع نه لرو چې د افغانستان مسأله د فلسطین او اسرائیلو ترمنځ شخړو سره تشبیه شي او یا د افغانستان د مسألې حل د دغه یا هغه هیواد په ښه نیت پورې مشروط وګڼل شي . د افغانستان مسأله باید د ملګرو ملتو په منځګړتوب په افغاني بڼه د افغانانو د عنعنې پر بنسټ حل شي .

دریمه دا چې د شوروي اتحاد له خوا د افغانستان د اشغال په وخت کې د امریکې د متحدو ایالتونو حکومت له هغو افغانانو سره چې له اشغالګرو سره یې مقابله کوله ، سخاوتمندانه مرستې وکړې . د افغانانو مقاومت په نړیواله سطح کمونیزم بې اعتباره کړ . خو کله چې روسان ووتل نو اوس امریکایي وسله د بشر د حقوقو پرضد زیاتره د بیګناه افغانانو د وژلو او د عصري ژوند د نښو د مینځه وړلو لپاره استعمالیږي . په دې صورت کې ، د امریکې د حکومت بې تفاوتي د توجیه وړ نه ده . برسیره پر دې ، که افغانستان په همدې حالت کې پریښودل شي امریکه به ماجرا غوښتونکو د تروریزم او د مخدره موادو او حتیٰ ذروي موادو د قاچاق له پرابلمونو سره مخامخ شي . که امریکه د ټولو لپاره دموکراسي غواړي په افغانستان کې د دموکراسی په اصولو ولاړ حکومت منځ ته راتلای شي ځکه چې اوس خلك د دموکراسی په

ارزښت پوهیدلي دي . په دموکراسۍ کې سوله، وروروي ، برابري ، اسلامیت ، افغانیت ، او معقولیت خوندي پاتې کیدای شي .

څلورمه دا چې پښتانه پاچا اعلیحضرت محمد ظاهرشاه د سولې او دموکراسي په تأمینولو کې ډیره مهمه ونډه اخیستلی شي خو په دې شرط چې ذ مسالې د افغاني حل لپاره لاره هواره شي. ځیني کسان فکر کوي چې پښتانه پاچا له محافظه کاری نه کار اخلي او توقع لري چې افغانان په طلایې پتنوس کې د قدرت طلایي کلی روم ته ورولیږي . زه پخپله په دې عقیده نه یم . ځیني خنډونه او ستونزې شته چې جلا بحث غواړي . بنایي هغه ورځ لیرې نه وي چې اعلیحضرت محمد ظاهرشاه نه د سولې ، دموکراسی او ملي وحدت د منځ ته راتلو لپاره مرسته وغوښتله شي .

په دې مقاله کې تراوسه یوه مهم ټکي ته اشاره نه ده شوی او هغه دا چې جګړه مار تنظیمونه یو واقعیت دی . د سولې د کوششونو په وړاندې د هغوی مقاومت ډیر ستر خنډ دی . دوی په سوله کې خپل زوال ویني . برسیره پر دې ، جګړه د هغو لپاره اوس عادت ګرځیدلی دی . یوه انسان وژونکی زما یوه دوست ته ویلي وو چې دا څو ورځې کیږي ما هیڅوک نه دی وژلي او له دې امله زما ټول بدن داسې تخنیږي چې ځمکه ځای نه راکوي . زما دوست وایي چې ما ډیر ژر په یوه پلمه ځان له ده څخه ګوښه کړ .

لیکن تر څه وخته ؟ پریږدئ چې سوله غوښتونکې نړۍ او د افغانانو پښتانی دوستان او ملګري ملتونه دغې پوښتنې ته ځواب ورکړي .

یادونه : دا مقاله د آلمان په کولن کې د پښتنو د ټولنیز ولسولیز ګوند له خوا یو جوړ شوي سیمینار ته وړاندې شوې وه .

# افغانستان : بشري حقوق او سوله

زمورږ گران هیواد افغانستان د ۱۳۵۷ کال د ثور په کودتا سره او په خاص ډول د ۱۳۵۸ کال د جدي له شپږمې را په دیخوا د نړیوال دوه قطبیز سیستم د مقابلې ډگر شو او د افغانانو وینې د سیاست په لابراتوار کې د ازموینې د موضوع ( sub- ject ) په توگه استعمال شوې . نور نو افغان ملت پخپله هدف نه ، بلکه په یوه وسیله بدل شو . د افغانستان په جگړه کې ذیدخلو هیوادونو خپلو مرستو ته اخلاقي رنگ ورکړ ، په داسې حال کې چې دوی دغه مرستې د خپلو سیاسي هدفونو او گټو لپاره استعمالولې . سعودي عربستان د افغانانو په وینو کې سرمایه گذاري وکړه څو د انقلاب اوښ یې د کور په مخ کې گونډې ونه

یك پشتوانهء قوی میتوان آنها را به صحبت وتفاهم دعوت نمود .

دراین آواخر دریچه های جدیدی به سوی افق صلح گشوده شده . فشار روز افزون گروه طالبان وشورای همآهنگی جمعیت انحصار طلبان را مجبور میسازد که باقبول امر صلح نزد مردم صلح طلب افغانستان ابرای ذمت نماید . علاوه براین اکثریت خاموش افغانستان نیز شاید دور سخنگوی وبالآخره زعیم خود جمع شوند وطریق نجات خویش را جستجو نمایند . بنابر آن ، تنظیمهای مجاهدین سابق هرچند وزن خاص خود را دارند ولی نمیتوان آنها را به حیث یگانه عامل تعیین کننده محاسبه نمود .

۲ - روس وامریکا : گفته میشود که روس وامریکا دگر کاری در افغانستان ندارند . البته ، این گفته ، یك جملهء غیرعلمی است . شاید افغانستان در پایان آجندا اقرار داشته باشند ولی نمیتوان آن را از لست آجندا حذف نمود . دراین جای شکی نیست که روسها مانند دورهء پترکبیر دریچه را به سوی اروپا گشوده اند . روسها میخواهند در اروپای متحد نقش درجه یك داشته باشند وایالات متحده را از اروپا بیرون نموده ، خود جای آن را اشغال نمایند . روسها شاید توقع داشته باشد حریف سرسخت خود جرمنی را به کمك اکثریت اتنیکی ومنابع سرشار اقتصادی خود از مقام رهبری پایان آورد .

خلاصه این که : روسها آرزو دارند به جای اتحاد شوروی سابق این بار در وجود اروپای متحد مقابل ایالات متحده قرار گیرند ولی این توجهٔ روسها به اروپا به این معنا نیست که آنها افغانستان را فراموش نموده باشند . روسها در اوایل اشغال

وهي . ایران دوه اړخیزې سیاسي ګټې کولې : ځینې افغانان یې له عراق سره جنګول او د ځینو په مرسته یې په افغانستان کې د مستعمرې جوړولو او په افغاني حکومت کې د ونډې اخیستلو پلان جوړ کړی و . پاکستان له دې څخه ویریده چې سبایې روسان به (پتر کبیر) د توصیې د عملي کولو لپاره د هند سمندر ته ځان رسوي . په لومړي سر کې یې د کمونیزم له خطر نه د بچ کیدو لپاره له افغانانو سره مرسته کوله . خو کله چې سور پوځ له افغانستان نه ووت ذیدخلو ځینو خارجي قوتونو هڅه کوله چې پخپله د روسانو ځای ونیسي ، یعنې د افغانستان پر خلکو د خپلې خوښې حکومت تحمیل کړي . د امریکې متحدو ایالتونو کوشش کاوه چې د افغانانو د وینو په قیمت په ویتنام کې د وژل شوو امریکائیانو انتقام واخلي او هم کمونیزم په نړیواله سطحه بې اعتباره کړي .

په دې ترتیب ګورو چې په افغانستان کې ذیدخلو هیوادونو د خپلو مادي او سیاسي ګټو لپاره د افغانانو په وینو کې سرمایه ګذاري وکړه او ډیر سود یې هم ترلاسه کړ . په دې ډله کې امریکائیانو تر ټولو زیاته ګټه وکړه ځکه چې نه یوازې یې په ویتنام کې د ماتې بدل واخیست ، بلکه د کرملین له ماڼۍ نه د کمونیزم سور بیرغ هم راښکته شو . دا چې ځینو په نورو نومونو د نجات چیغې وهلې معلومه شوه چې دغه دعوی داران هم ناوړه سیاسي تجارت کوي او د بیګناه مسلمانانو په وژلو سره د خپلو ادعاوو پرضد کار کوي . دا چې ځینو د بشر د حقوقو ، هیومانیزم او دموکراسی څخه د دفاع نارې وهلې معلومه شوه چې دوی

يوازې هغه وخت د بشر دوستی او دموکراسی طرم غږوي چې عملي گټه پکې متصوره وي . سوله ، دموکراسي ، د بشر حقوق او داسې نور د امریکا د سیاسي پراگماتیزم لپاره د بهانې اسباب او وسایل دي . که زما دغه خبره تهمت وگڼله شي نو ولې د امریکې ځینو مسؤولو مقاماتو څو ځله ویلي دي چې د امریکې متحدو ایالتونو حکومت اوس د افغانستان له مسألې سره علاقه نه لري . له دی څخه معلومیږي چې د امریکې علاقه مندي اخلاقي علاقه مندي نه وه . بلکه سیاسي علاقه مندي وه . زما په عقیده ، حتی په سیاست او تجارت کې هم یو ډول اخلاقي مکلفیت او اخلاقي موازین ارزښت لري . که یو سیاست بالکل له اخلاقو نه لځ شي نو خپل اعتبار بایلي او ښایې چې یو څه قیمت به هم تادیه کړي .

د دې لیکنې اصلي هدف دا دی چې د امریکې د متحدو ایالتونو له حکومت نه پوښتنه وکړو چې تاسې څنگه دومره ژر افغانان هیر کړل ؟ آیا ستاسو نه په یادیږي چې د افغانانو په نوم یوه ملت د کمونیزم مانۍ ولړزوله او د افغاني توری په برکت نن د امریکائیانو بچیان آرام خوب کوي . آیا دغه بیل بیل جگړه مار چې ستاسو په راکټونو او وسلو په بیرحمانه توگه زموږ بیگناه او سوله غوښتونکي هیوادوال وژني ، ستاسو پیسو او وسلو نه دي مست کړي ؟ آیا تاسو دغه تنظیمي جگړه مارې ډلې جلا جلا ونه ساتلې او د یوه واحد زعامت د جوړولو نه مو ډډه ونه کړه ؟ آیا په داسې وخت کې چې جگړه غوښتونکي تنظیمونه په امریکایې وسلو او راکټونو انساني وژونکی او مدنیت ورانوونکی جگړې پرمخ بیایې ، امریکاییان ځان ته اجازه ورکوي چې ووایې : زموږ

هدف سر ته ورسید نور نو موږ نه افغانانو ته ضرورت لرو او نه ورسره علاقه لرو ؟ هو ، د افغان وینه دومره ارزانه شوه چې څوك یې وریا هم نه غواړي .

گرانو وطنوالو ! موږ د دغو پوښتنو حق لرو . نن سبا چې په عام ډول افغانان او په خاص ډول د کابل اوسیدونکي او په خیمو کې اوسیدونکي مهاجرین په هیواد کې د روان ناتار له امله دوزخي ژوند تیروي ؛ د خلکو شرف ، ناموس ، کورونه ، شتمني ژوند ، ملي دارایې ، تاریخي آثار ، او د تمدن نښې په بیرحمانه توگه بربادیږي خو د بشر د حقوقو مدافعان لاس تر زنې په ننداره بوخت دي . افغانانو د دې لپاره جگړه نه کوله چې له بارانه وتښتي او ناوې ته کښیني . د افغانستان نامتو شاعر گل پاچا الفت وایي :

له دامه که دی خلاص کړم په قفس کې دې ایسار کړم
صیاده ، ما خو څو رنگه زندان لیدلی دی

هو ، افغانان له لومې خلاص شول په قفس کې ایسار شول . سره دکتاتوری لا ختمه شوی نه وه چې بله دکتاتوري پرې نازله شوه .

پخوا به تنظیمونه له کفر او الحاد سره جنگیدل اوس د څه لپاره جنگیږي ؟

درنو وطنوالو ! ښایې چې ځینې اوریدونکي به زما لهجه نه خوښوي او وایې به چې باید له امریکاییانو او ملگرو ملتونو نه مننه وکړو او کورودانی ورته ووایو . خو کله چې زما ورونړه او خویندې په راکټونو ټوټې کیږي او یا د لوږې او یخنی له لاسه مري څنگه کولی شم له دپلوماسی نه کار واخلم ! زموږ په لکونو خلك د وچې ډوډۍ په ارمان دي ، د ځان د تودولو لپاره څه شی نه

لري ، دوا او ډاکتر نه لري ، ژوند او حیثیت یې له خطر سره مخامخ دی ، په داسې شرایطو کې څنګه کولی شم ، د فریاد او زګیروی په ځای د ډپلوماسی خوږه او پسته ژبه استعمال کړم ؟ کله چې په راکټ ویشتل کیږم څنګه کولی شم له راکټ ورکوونکي نه یو جهان تشکر او مننه وکړم ؟

ملګري ملتونه هم کله کله یو نیم سست او لړزیدونکی ګام د افغانستان خواته پورته کوي خو ګمان نه کیږي چې «دا وړی به شړی شي .» د تعجب خبره دا ده چې څه موده مخکې د ملګرو ملتو یو غټ مقام وویل : افغانان دې له صبر نه کار واخلي ، د عربو او اسرائیلو ترمنځ منازعه حل شوه یوه ورځ به د افغانستان مسأله هم حل شي . ده دا هم وویل چې د افغانستان مسأله د ځینو ګاونډیانو له مرستې نه پرته نه حل کیږي . دا د یوه غټ شخصیت خبرې وې چې زموږ پر زخمونو یې مالګې ودوړولې . د افغانستان داخلي جګړه چې لږ تر لږه د شپږو هیوادو له خوا تمویل کیږي د ماهیت په لحاظ د عربو او اسرائیلو له منازعې سره ډیر توپیر لري او د افسوس ځای دی چې دواړه یو ځای یادیږي او سره مقایسه کیږي . که موږ د عربو او اسرائیلو ترمنځ شخړه حل شوې وګڼو نو آیـا افغـانان هم نیمه پیړۍ ملګرو ملتونو ته وخت ورکړي ؟ ترهغې پورې به د کابل ښار او د افغانستان زیاتره ودانۍ سیمې په هدیره بدلې شوې وي . دا هم معلومه نه ده چې په هدیره باندې به د دموکراسۍ بیرغ رپیږي او که د تورې دکتاتورۍ؟ حتیٰ د سرې دکتاتورۍ احتمال هم نه شو نفی کولی ځکه که په نړۍ کې دغه اوسنی اقتصادي ستونزې او بحرانونه پسې زیات

شي نو د نوي ډول کمونيزم تخم به هر چيرته زرغون شي .

زموږ د ګاونډيو ، لکه د پاکستان ګټه په دې کې ده چې په افغانستان کې سوله راشي څو پخپله په سوله کې ژوند وکړی شي او د افغانستان له لارې د منځنۍ آسيا له هيوادونو سره تجارت وکړي . برسيره پر دې ، په افغانستان کې يو بنيادګرای حکومت هم د پاکستان په ګټه نه دی ځکه چې ايډيالوجی په نامه به هميشه د پاکستان په داخلي چارو کې لاس وهي او ستونزې به پيدا کوي .

ايران هم بايد په دې وپوهيږي چې د افغانستان ورونو قومونو په زرګونو کلونه له خپلې خاورې نه د تيرې کوونکی په مقابل کې دفاع کړې ده ، يو ځای يې ژوند سره کړی دی ، يو افغاني روح ، ملي کرکتر ، افغاني فرهنګ ، ګډ تاريخ ، او د وينو امتزاج د دوی ژوند رهنمايی کوي . يو پښتون د يوه تاجيك نوکری کولی شي خو د بيګانه نه . يو تاجيك د پښتون نوکري کولی شي خو د بيګانه نه . زموږ د خاورې ويش ته منتظرين بايد وپوهيږي چې د هر اجتماعي نظام له تغيير نه وروسته يو څه ګډوډي او بحران منځ ته راځي . دا يو عبوري بحران دی ، توفان به تير شي ، د سولې او ملي وحدت لمر به د افغانستان فضا روښانه کړي . د افغانستان اکثريت خلك سوله غواړي ، آزادي غواړي ، ورورري او برابري غواړي . سعودي عربستان بايد د مسلمان وژنې لپاره پترو دالر مصرف نه کړي . امريکه به هرومرو په دې خبره پوهيږي چې نن سبا که په اوبو کې ماهيان هم جنګ کوي خلك وايې په دې کې د امريکې لاس دی . نو هيله ده چې

دغه ابرقدرت خپل مسؤولیت او موقف درك کړي .

په پای کې وایم چې افغانان به ووژل شي خو افغانستان به ژوندیاتې شي . افغانستان د یوه داسې قهرمان ملت کور دی چې د خپل وخت ابرقدرتونه یې له پښو غورځولي دي .

تل دې وي افغانستان !

مړه دې وي بیرحمه قاتلان !

تل دې وي افغاني روح !

( دا لیکنه اروابناد استاد روهي په بُن کی د افغانانو یوې غونډې ته اورولې وه ) .

# ستا له خيره مې توبه ،
# ضرر مه رارسوه !

د ۱۹۹٦ کال د جنورى په ١٤ مه نيټه مې د (راډيو آزادي) څخه دا خبره واوريده چې افغانستان يو واحد هيواد نه دى. ددغې راډيو په تاجيکي خپرونه کې لومړى دا پوښتنه طرح شوې وه : « آيا ميتوان افغانستان را کشور يگانه ناميد ؟ » له توضيحاتو وروسته ، دغې پوښتنې ته منفي ځواب ورکړ شو . دليل يې دا و چې استاد رباني او جنرال دوستم له بهرنيو هيوادو سره جلا جلا تړونونه لاسليک کوي ، د هيواد سيمې د بيلو بيلو قوماندانانو په لاس کې دي .

دلته زما په ذهن کې يو څو پوښتنې راولاړيږي :

لومړی دا چې ( راډیو آزادی ) د متحده ایالتونو د کانګرس په پیسو چلیږي . امریکه څنګه پخوا له وخته د چرګ په شان آذان کوي . که کومه نقشه نه لري نو څنګه یې تاجیکي ژبې راډیو ته اجازه ورکړې ده چې تانګ وشلوي او هر څه یې چې خولې ته راځي بې مسؤولیته یې ووایي .

دوهمه پوښتنه دا ده چې په تاجیکستان کې خو هم داخلي جنګونه روان دي نو بیا « تاجیکستان عزیز » ولې یو واحد هیواد ګڼي .

دریمه پوښتنه دا ده چې نوموړی راډیو ولې ځینو ته افسانوي قهرمان وایي په داسې حال کې چې خلك افسانې درواغ ګڼي .

څلورمه پوښتنه دا ده چې په افغانستان کې قانوني حکومت نشته نو لویدیځ هیوادونه څنګه ځان ته حق ورکوي چې له محلي چارواکو سره تړون لاسلیك کړي ؟

رښتیا خبره دا ده چې د افغانستان خپلواکي او د خاورې بشپړتیا د یو شمیر هیوادونو د سترګو اغزی دی . افغانستان یو وخت د نړۍ تر ټولو نازولی هیواد و . د لویدیځ وسلې او خزانې د افغانانو په نامه راخورې شوې او « سره مهران په کوهسار ننوتل . » په نړۍ کې به ډیر لږ داسې تلویزیوني دستګاه وي چې له شوروي کمونیزم سره یې د افغانانو د مقابلې خبرونه هره شپه خپاره کړي نه وي . لیکن داسې وخت هم راغی چې په لسګونو افغانان مړه شوي دي ، نه په راډیو کې چا یاد کړي دي ، نه په تلویزیون او نه په ورځپانو کې . زما ښه په یاد دي چې د ۱۹۹٤

کال د جنوری په لومړۍ نیټه په کابل کې ډېره خونړۍ جګړه ونښته چې په لسګونو افغانان پکې مړه او نژدې دوه سوه پکې ټپي شوي وو . ما د جرمني له څو تلویزیوني کانالونو څخه په دې باب یو خبر هم وانه ورید په داسې حال کې چې د یوه سپي خبر مې درې ځله په تلویزیون کې وکوت . نوموړی سپی چې له اور څخه ژغورل شوی و ، خبر یې خپور شو مګر د اتیا تنه افغانانو د مرګ او دوه سوه تنو د زخمي کیدو خبر خپور نه شو . نو څه شوه هغه افغان دوستي او څه شوه د دوی بشر دوستي !!

اوسني افغانان چې خپلو ته ګوري او پردیو ته ګوري له بدبینۍ حخه پرته به بل شی زده نه کړي . په تیرو شپاړس کلونو کې یوازې هغه افغانان د شهرت خاوندان وو چې د غلامی په فن کې یې پوره مهارت درلود . چا چې غلامي نه وه زده ، سیاسي شهرت یې نه شو ګټلی . دغه وضع لا تراوسه دوام لري . لا تراوسه په هیواد کې ملي حاکمیت نشته . افغانان به هیڅکله اجازه ورنه کړي چې خپلواکی او د خاورې تمامیت ته یې زیان ورسیږي . زموږ ملي تاریخ د دې واقعیت شاهد دی چې ځینو واکمنانو د هیواد په سر سودا کړې ده خو کله چې اولس پوهیدلی دی د هغو نقشې یې شنډې کړې دي او که خدای کول ځینې به په راتلونکی کې شنډې شي .

موږ ته لازمه نه ده چې خپل وخت په ګیلو او د نورو په غندلو تیر کړو . لوی هیوادونه خپلې ملي ګټې لري دا چې وایې : « سیاست مور او پلار نه لري » مقصد یې دا دی چې سیاسي اخلاق له فردي اخلاقو سره توپیر لري . په فردي اخلاقو کې سړی

کولی شي چا ته باغ یا ځمکه ورو‌بخښني ، لکه مهاجرو ته چې انصارو باغونه یا پټي ورکړل یا ، لکه تولستوی چې خپل جایداد یې خوارانو ته وقف کړ . لیکن یو هیواد نشي کولی چې حتیٰ یوه لویشت خاوره چاته ورو‌بخښني او که دا کار وکړي نه یوازې ثواب نه ګټل کیږي ، بلکه ملي خیانت ګڼل کیږي . په فردي اخلاقو کې هر چا ته ښایي له خپل ګاونډي سره مرسته وکړي خو په سیاست کې د هر هیواد واکمنان د ګاونډیو هیوادو کمزورتیاً له خدایه غواړي او په بده ورځ یې خوشالیږي .

په اوسني وخت کې د هیواد د خاموش اکثریت او د سولې او دموکراسی او د ښځو او په مجموع کې د بشر د حقوقو د پلویانو یوازینی اخلاقي وجیبه دا ده چې تشکل ته اقدام وکړي . تشکل یوازینۍ معنوي وسله ده چې روښنفکران ورڅخه استفاده کولای شي . دا به مطلوب کار نه وي چې هر څوک نوی ډله جوړوي . لومړی باید وګورو چې له کومې ډلې یا ګوند سره د مفکورې په لحاظ نژدی یو او کولای شو چې ګډ پلاتفورم ورسره ولرو . د زیاتو ډلو جوړول موږ له اصلي هدف څخه لیرې کوي . موږ باید په ګډه خارجي مداخله کوونکو ته ووایو : ستاسو له خیره مو توبه ده ، ضرر مه رارسوئ !

افغانستان آب گرم بحرهند را به خواب میدیدند وانتظار داشتند الحاق افغانستان را به حیث شانزدهمین جمهوریت شوروی به ببرك کارمل وشرکاء تهنیت بگویند وپرچمیها پرچم الحاق را به اهتزاز درآور ند . در اثر مقاومت بی مانند مجاهدین ومبارزهء روشنفکران وطندوست ودموکرات چه در داخل ویا خارج کشور ، وفشار بین المللی ، روسها سیاست خود را تغییر دادند . در مرحلهء دوم آنها کوشیدند طرح « مرز علمی Scientific Border » انگلیسها را تحت نام جدید « شمال سوسیالیست وجنوب دموکرات » عملی سازند یعنی افغانستان شمالی وافغانستان جنوبی را به وجود آورند . چنان که در ده ولایات شمال افغانستان پروژه های سوسیالیستی ساختن را به راه انداختند . این نقشه هم نقش برآب شد . در مرحلهء سوم روسها خواستند برای خروج از افغانستان « بینی خمیری » برای خود بسازند وبه همین جهت معاهدهء ژنیو را امضاء کردند .

هرچند روسها راه کمونیزم را ترك گفتند ولی سیاست تفرقه اندازی آنها در افغانستان تحت نام « مسألهء ملی » هنوز به حال خود باقیست . آنها میخواستند بعض « ملیتها » را برضد یك «ملیت» دگر بسیج نمایند . به قدرت رساندن جناح پرچم را نمیتوان امر تصادفی دانست . به این ارتباط اسناد صریح موجود است . سازش پرچمیها با بعض قوماندانان جهادی نیز ادامهء همان سیاست است . شمول جنرالان پرچمی در اردو ، نشر بانکنوتها برای یك حکومت غیرمشروع ، فرود آوردن طیارهء روسی توسط طالبان وامثال اینها همه شواهد انکار ناپذیر مداخلهء روسها به

# تاکه میچلد بچلان

درانه لوستونکي به اریان وي چې دا یې څه ناآشنا غوندې عنوان ټاکلی دی . خو دا عنوان په اصل کې له یوې قصې څخه اخیستل شوی دی او هغه قصه داسې ده :

وایې چې د یوه لوی خان د نفوذ سیمې ته یو نوی ښوونکی راغلی و ، خان ته خلکو وویل : چې نوی ښوونکی چندانې عالم نه ښکاري خو ډیر هوښیار او رموز فهمه سړی دی . خان وویل : بس زما هم هوښیار سړی په کار دی . هغه و چې سړی یې راوغوښت او ورته یې ویل : ته به زما زوی ته سبق وایې ؟ زه نه غوارم چې

هغه لوی عالم او یا پوخ میرزا شي ، بلکه غواړم چې هغه هوښیار شي او د ژوند په چارو او رموزو پوه شي . کله چې هلك په لومړی ورځ درس ته کښیناست ښوونکي ورته وویل : « تا که میچلد بچلان » .

یعنې تر څو چې چلیږی چلوه یې ! دا د لومړۍ ورځې سبق و .

داسې ښکاري چې چارواکو به هم له هماغه ښوونکي نه درس لوستې وي ځکه د دوی شعار هم دا دی : « تا که میچلد بچلان » د دوی لپاره بې تفاوته ده چې د هغوی زور واکي او انحصار غوښتنې په نتیجه کې څومره بیګناه هموطنه مسلمانان وژل کیږي ، څومره کورونه او ودانۍ په کنډوالو بدلیږي ، څومره فقر ، بیسوادی ، ناروغتیا او وحشت زیاتیږي او افغانستان څومره د نړۍ د تمدن او ترقی له کاروان څخه لیرې پاتې کیږي . د سولې د منځ ته راتلو په لاره کې د ډې تعلل او د موانعو ایجادول تر ټولو ستر خنډ دی له همدې امله د ټولو کورنیو جګړو ، ورور وژنو او تخریبونو لومړۍ درجه مسؤولیت د چارواکو په غاړه دی .

چارواکې پخپله هم په دغو خبرو تر هر څه ښه پوهیږي وایي چې یوه ورځ یو چارواکي له خپلو نژدې یارانو سره ناست و لومړی یې په قهقه وخندل او بیا یې یاران مخاطب کړل : « زه خو څه ملا-نصرالدین نه یم چې پخپله خوښه له قدرت نه تیر شم . ګمان نه کوم چې حتیٰ ملا نصرالدین به هم له قدرت نه تیریدل د ټوکو مسأله ګڼلې وای ځینې کسان په ما پسې تبلیغ کوي چې د ده وسله والو قواوو دومره کافران نه دي وژلي ، لکه بیګناه مسلمانان یې چې وژلي دي . دا انتقاد وارد نه دی . که کفارو زیات

مقاومت کړی وای نو زیات کفار به مې وژلې وای . اوس چې مسلمانان زیات مقاومت کوي نو طبعاً زیات مسلمانان به وژل کیږي .

له امریکې او یورپ نه ځینو روشنفکرو دوستانو ماته لیکلي دي چې په افغانستان کې هیڅکله قدرت په مسالمت آمیزه ډول نه دی انتقال شوی ، نو د هغوی په عقیده زه هم حق لرم تر وروستې سلګې پورې د قدرت لپاره وجنګیږم . د هغوی له ښه نیت نه مننه کوم خو دا د خندا وړ خبره ده چې ځینې کسان زما په خبرو غولیږي او فکر کوي چې زه په رښتیا له قدرت نه تیریږم . زه دومره مهارت لرم چې د محمود مستیري غوندې کسان اووه وارې سیند ته تږی بوځم او تږي یې بیرته راولم . هغه بیا راروان دی لیکن خوشې چتې . نن سبا ټول شرایط زما په ګټه دي . له بیلا بیلو لارو مې دومره وسله ترلاسه کړې ده چې هیڅوک زما سنګرونه نشي ماتولی . که څه هم زما قدرت هیڅ ډول قانوني مشروعیت نه لري خو ملګري ملتونه باید له ما سره دپلوماتیک روابط وساتي . دوی د ببرک کارمل نماینده په ملګرو ملتو کې منلې و نو زما نماینده به په کومو سترګو ردوي . که زما قدرت مشروعیت نه لري د کارمل حکومت هم مشروعیت نه درلود . زه د نړۍ په رادیوګانو کې د جمهور رئیس په توګه یادیږم هغه هم یوازې په دې خاطر چې پایتخت زما په لاس کې دی . په ملګرو ملتو کې مې یو پوخ او تجربه کاره دپلومات د نماینده په توګه کښینولی دی چې په کابل ښار باندې زما حکومت یې نړیوالو ته د افغانستان د دولت په توګه ورپیژندلی دی . زه هم زور لرم هم زر لرم چې دا دواړه د حکومت کولو لپاره لازم او کافي شرطونه ګڼل کیږي (١)

بانکنوټونه راته روسیه چاپوي ، نه پوهیږم د روسیې حق به څنګه ادا کړم ؟ وایې که خان یې په یاران یې . له هندو سند ، روم او قلزم نه تر توري بحیرې پورې مرغلرې دي چې زما پر سر شیندل کیږي . دښمنان مې دومره لیرې ځغلولي دي چې د هغوی راکټونه زما آرام خوب نشي تښتولی . هغوی نشي کولای خپل قوتونه سره یوځای کړي او له یوې موضع نه پر ما حمله راوړي . په خارجي هیوادو کې هم داسې څوك نه وینم چې زما د ناکامی لپاره یې ملا تړلې وي . راغلو خاموش اکثریت ته دغه اکثریت څه ارزښت نه لري . دوی اصلاً د غلامی لپاره پیدا شوي دي . هر څوك چې د توری په زور حکومت ونیسي دغه خاموش اکثریت مجبور دی د هغوی نوکري وکړي . په محاسبه کې د دوی قیمت صفر دی . دغه کسان خپل جبن ته د سولې غوښتنې نوم ورکوي . اخلاق او قانون خو د کمزورو خلکو وسله ده . دوی بله وسله نه لري مجبور دي د سولې ، وطن تاریخ ، فرهنګ ، عدالت او آزادۍ په نامه غټې غټې لغتونه زموږ سترګو ته نیغ ودروي . خو اوس د سیاسي واقعبینی وخت دی . په افغانستان کې یوازې توره حکومت کوي . هر که آب از دم شمشیر خورد نوشش باد !

د چاروکي له وینا وروسته یارانو ده ته د تحسین په نظر وکتل . د دوی په ډله کې د یوه تن له روحیاتو څخه معلومیده چې هغه د ویلو لپاره څه لري دغه سړی چې په سیاست پوهنه کې وارد و . له چاروکي نه یې د خبرو کولو اجازه واخیسته او په نرمۍ سره یې خپلې خبرې داسې پیل کړې : « ستاسې خبرې ټولې سمې او په واقعیتونو بنا دي . نن سبا د سیاست په نړۍ کې سیاسي

ریالیزم یو مسلط مکتب دی . سیاسي ریالیزم د عواطفو ، او ضروري ارتباط د پیدا کولو په نتیجه کې د اوسنیو او راتلونکو انکشافاتو ماهیت درك کولای شي . خو باید دا خبره هیره نه کړو چې ځیني ټاکونکي عوامل په نامحسوس ډول انکشاف کوي او د ځینو سیاستمدارانو پاملرنه نه جلبوي . په دې صورت کې دوی له اشتباهاتو سره مخامخ کیږي فکر کوم تاسې به ماته د آزاد بحث اجازه راکړئ . د مثال په توگه همدا خاموش اکثریت به په نظر کې ونیسو . سړی فکر کوي چې دغه بې وسلې خلك د مړو په شمار دي خو کله چې ځوك پښه وربانديې ږدي نو هغوی د مړه مار په شان نیش وهي او روغ سړی له پښو غورځوي . دغه خاموش اکثریت هیڅکله چوپ نه پاتې کیږي . دوی په یوه یا بله طریقه د خپل وجدان آواز پورته کوي دوی د روسانو په ایستلو کې مؤثر نقش درلود . هغوی له موقع نه په استفادې سره د کمونستانو پر عملونو باندې ملنډې وهلې . همدا اوس د بی بی سی راډیو او امریکې غږ راډیو د دوی آوازونه حیروی په اوسني وخت کې نړیوال د دوی منطق ته اهمیت ورکوي ، ځکه د دوی منطق د سولې ، عدالت او ترقی غوښتنې ښکارندوی دی او د عصر له غوښتنو سره سمون لري ، دوی به پر ملکرو ملتونو باندې د تشویق یا انتقاد له لارې دومره فشار راوړي څو د هغو غوښتنو ته غاړه کیږدي . دا سمه ده چې ملکري ملتونه اوس په داسې موقف کې نه دي چې افغانستان ته پوځ راواستوي خو هغوی نور تاکتیکونه او امکانات لري ځینې داسې نښانې شته چې د افغانستان گاونډي هیوادونه زموږ په هیواد کې دایمي بحران په

خپله ګټه نه بولي . که دوی سولې ته تمایل وښود نو هرومرو به له هغوی نه خپله ګټه اوچتوي . که نه د سولې بشر دوستی ، او ترحم الفاظ نه د دوی په قاموس کې شته او نه زموږ . د دې احتمال شته چې ګاونډي دولتونه د طویل المدت ګټو په خاطر خپل سیاستونه د سترو دولتونو له سیاست سره عیار کړي . د نویو ائتلافونو امکانات هم شته ، د دې امکان هم شته چې خاموش اکثریت ځانته خپل مشرتوب پیدا کړي . همدا اوس ځینې داسې نښې لیدل کیږي چې اکثریت به خپلې غوښتنې پر موږ باندې تحمیل کړي ، زموږ لپاره به بالکل مشکله وي چې محموډ مستیري ته « نه » ووایو دا ځل « نه » ویل بله معنا لري ځکه وخت د مسایلو د حل کولو مسؤول دی ، که « هو » ووایو نو دغه « هو » باید په عمل کې پیاده شي ، دا سمه ده چې موږ د توري په زور حکومت کوو او د « تا که میچلد بچلان » له شعار څخه پیروی کوو خو وخت موږ ته چلنج راکوي ، که موږ وغواړو د توري په زور پر ټول هیواد حکومت وکړو باید څو کاله پرله پسې جګړه وکړو او په هره جګړه کې بری زموږ پر خوا وي . آیا د دغو کلونو په اوږدو کې به هیوادوال او نړیوال په تیره ذیدخل هیوادونه لاس تر زنې زموږ ننداري ته ناست وي ، د افغانستان خلك به تر هغې هیڅ ډول تصمیم ته نه رسیږي او زموږ ورروستي سوبې ته به انتظار باسي موږ باید پر خپلو پرابلمونو له سره غور وکړو ... » .

چارواکي پوه شو چې د ده خبرې رد شوې دي ، ښایې په دې خاطر چې هغه یوازې د ( زه ) ضمیر استعمالوي او دغو نورو کسانو ته د یوې وسیلې په نظر ګوري ؛ ښایې په دې خاطر چې د

مخالفانو له ماتې وروسته د ده په احساس او تفکر کې د « دایمي رئیس جمهور » مفکوره زرغونه شوې ده . او یا ښایې په دې خاطر چې د چارواکې فکر متحجر شوی دی هغه باید تنبیه شي چې نویو انکشافاتو ته د مغزو کړکۍ خلاصې پرېږدي .

یادونه : د دې مقالې دیالوګونه تخیلي دي (لیکوال) .

# دموکراسي او د فرهنګ د ودې مسأله

د آزاد افغانستان د ليکوالو ټولنې پوه او منلى مشر پروفيسور امين صاحب !

ستاسو پوښتنليك راورسيد . دا چې تاسو په مهمو فرهنګي مسالو کې زما نظر غوښتى دى له تاسو څخه مننه کوم خو له ځواب ورکولو نه مخکې دا متل ذهن ته راځي چې وايي « غوا حلاله نه ، ښانك په سر نيولى . » تراوسه دا نه ده معلومه چې په هيواد کې به څه ډول حکومت استقرار مومي ، ساينس او هنري فرهنګ ته به د بدعت په سترګه ګوري او که هغو ته به په کوم ارزښت قايل وي ؟ نو دا پوښتنې چې تاسو کړې د راتلونکي حکومت په فکري جوړښت او کړنلاره پورې اړه لري . او دا هم

ښرگنده ده په کوم ځای کې چې دموکراسي نه وي هلته علوم او فرهنګ آزادي نه لري ، بلکه د مستبد حکومت د مشر نظر د صحت او سقم اصلي معيار ګڼل کيږي ؛ هغه مشورې ته هم احتياج نه لري ځکه خپل ځان ورته « عقل کل » ښکاري .

زما د دغې يادونې مقصد دا نه و ، چې ګويا دغه پوښتنليك بې ارزښته دی . ولې به بې ارزښته وي ؛ موږ د ملت د خير لپاره خپل نظر ورکوو که حکومتونه يې نه عملي کوي هغه د دوی کار دی . موږ د ملت لپاره سوله غواړو که جګړه ماران يې نه عملي کوي هغه په دوی پورې اړه لري .

ستاسو پوښتنو ته د ځواب ورکولو لپاره زما معيارونه (د اسلامي تعليماتو جوهر ، د افغاني ټولنې د پرمختګ اړتياوې ، د افغانيت اصيل ارزښتونه ، د علومو او فرهنګ د انکشاف ذاتي اړتياوې ، او عام نړيوال ارزښتونه) دي .

**پوښتنه** : که په آينده افغانستان کې د ليکوالو ، هنرمندانو او ژورناليستانو اتحاديې جوړيږي هغه بايد څه ډول جوړې شي ؟ آيا دغه اوسنې دولتي جوړښت يې پاتې شي او که آزادې شي ؟

**ځواب** : کومې اتحاديې چې د دولت له خوا جوړيږي هغوی د دولت د لاس آله وی او د ورځنې مصلحت سره سم د دولت د اعمالو د توجيه کولو لپاره تبليغات کوي . د هغوی معاش او نورې اسانتياوې د دولت له خوا تأمينيږي . په دې صورت کې اتحاديې د خپل مسلك پرستيژ او ماهيت نشي ساتلای او نه د اتحاديې د هدفونو لپاره مبارزه کولای شي . د دې احتمال هم شته چې په ځينو دکتاتوري نظامونو کې د شکلياتو له مخې « آزادي

اتحادیې » جوړې شي او له مختلفو منابعو څخه د اتحادیو فند (fund) راغونډ شي خو دغسې اتحادیې معمولاً له بدنامۍ څخه نه خلاصیږي . په دې اساس ، آزادې اتحادیې په هغه صورت کې ښې دي چې د دولت مشرتوب د بیان آزادی ته اجازه ورکړې وي .

**پوښتنه :** د افغانستان د علومو اکاډمۍ په باب ستاسې څه خیال دی ، په دې جوړښت کې د ترمیم او بدلونې رابدلونې امکانات څنګه وینئ ؟ ځینې کسان د اکاډمۍ دغه موجودیت نفی کوي ، ستاسې په دې باب څه خیال دی ؟

**ځواب :** ځینې منفرد کسان او یا ډلې د افغانستان د علومو اکاډمۍ په مقابل کې حساسیت لري ځکه چې دغه اکاډمي د پخواني شوروي اتحاد د موډل په تابعیت جوړه شوې ده . دا یو ډول اروایي ( سایکالوجیک ) عکس العمل دی ، کوم منطقي دلیل نه دی . موږ علوم په دې دلیل نه شو نفی کولای چې کمونستان ، فاشیستان ، استعمارچیان ، او داسې نور له هغو څخه استفاده کوي . موږ باید د ( خذ ماصفا ودع ماکدر ) د اصل پر اساس د علومو اکاډمۍ هغه هدفونه ، ارزښتونه ، او جوړښتونه چې زموږ له ملي او اسلامي شؤناتو سره مغایرت ونه لري ، پر ځای پرېږدو او تغییر ورنه کړو . که د عمل په جریان کې د تغییر ضرورت احساس شي نو هغسې تغییرات به د علمي کادر په سپارښتنه کیږي . اصل خبره دا ده چې افغاني ټولنه د علمي - فرهنګي تحقیقاتو یوې باصلاحیته مؤسسې ته ضرورت لري ( مقصد مې علمي صلاحیت دی ) دغسې مؤسسه همدا اوس شته ، صرف د هغې قانون او مقررات نوی کتنه غواړي . که یو ځلې دغه مؤسسه

طرفداری یك گروه میباشد .

آمدیم راجع به سیاست امریکا در مورد افغانستان . اگر ایالات متحدهء امریکا به بهانهء اخلاقیات مانند حقوق بشر ، احترام به آزادی انتخابات ، دفاع از استقلال یك کشور درمقابل تجاوز خارجی ونظایر آنها در امور داخلی کشورها مداخله نمیکرد ما هم مسألهء اخلاقیات را در برابر چشم امریکائیان قرار نمیدادیم. چنین به نظر میرسد که امریکائیان در خون افغانها سرمایه گذاری کردند وتوانستند دهها ملیارد دالر را که برای تضعیف کمونیزم مصرف میکردند ، کمایی نمایند . آنها توسط خون افغانها خونبهای قربانیان امریکایی در جنگ ویتنام را نیز به دست آوردند.

این درست است که افغانها برای آزادی خود میرزمیدند ، ولی امریکا توانست بیشترین مقاصد سیاسی ، ایدیالوجیك ، واقتصادی خود را از طریق جهاد افغانها برضد اشغالگران روس به دست آورد . بی تفاوت ماندن امریکا به معنای اینست که اخلاقیات برای امریکائیان یك ماسك وتظاهر ریاکارانه است . شکست روسها توسط افغانها شکست مورال ، شکست اقتصاد ، وشکست ایدیالوجی روسها را درپی داشت . البته ، مبالغه آمیز خواهد بود که مقاومت افغانها را یگانه عامل سقوط کمونیزم در روسیه واقمار آن بدانیم ولی آن را باید دست کم هم نگیریم .

خلاصه این که : امریکا اخلاقاً مکلف است بیشترین توجه را به امر تأمین صلح در افغانستان معطوف ساخته واین موضوع را در صدر آجندا قرار دهد .

۳ - کشورهای همسایه وسایر کشورهای ذیعلاقه : ایران

ړنګه شي ګمان نه کوم چې کومه بله مؤسسه به يې ځای ډك کړي .

دلته د يوې بلې خبرې يادونه ضروري ګڼم د اکاډمی مؤسس ( اپلاتون Plato ) وايي : « څوك چې حقيقت وژني هغه قاتل دی . » همدارنګه ده ويلي دي : « په حقيقت پسې وګرځئ او له دې څخه مه ويرېږئ چې په څه شي به واوړئ . » نو څوك چې اکاډمی چلوي ، علومو او فرهنګ ته به آزادي هم ورکوي .

« څوك چې اوښان ساتي د کور دروازې دنګې جوړوي . » د پخواني شوروي اتحاد د علومو اکاډمی چې د ټاکلې ايډيالوجې تابع وه ، نه يې د نظام د سقوط مخه ونيولې شوه ، او نه يې د مهار شوي تحول لپاره کومه ارزښتمنه تيوري وړاندې کړه . اکاډمي د اکاډميك آزادی په رڼا کې لارښوونه کولای شي .

**پوښتنه** : د اکاډمی د تحقيقی انستيتونو ترڅنګ ځينې وزارتخانې هم مشابه تحقيق انستيتونه لري ، د دغسې مشابه انستيتونو د تکرار کارونو د مخنيوی لپاره بايد څه وشي ؟

**ځواب** : په اقتصادي لحاظ بيرته پاتې ټولنې بايد د دوپليکيشن ( Duplication ) مخه ونيسي . دا کار په افغانستان کې په دې توګه کيدای شي چې اکثرې وزارتخانې د علومو له اکاډمی سره پروتوکلونه لاسليك کړي . هر چيرته چې ريسرچ کيږي اکاډمی بايد ترې خبره وي او د لارښوونکی حق ولري . البته د دغسې حق د ګټلو لپاره بايد له اکاډمی خپل علمي پرستيژ ترلاسه کړی وي . په تيرو څو کلونو کې د پوهنتون استادانو د اکاډمی برلاسي نه منله . علت يې دا و ، چې د اکاډمی تحقيقاتو په مجموع کې دا امتياز نه و ګټلی چې د

پوهنتون استادان دي د تدريس لپاره ترې لازمه گټه واخيستلې شي .

**پوښتنه** : د ځينو هيوادونو اکاډمی د تحقيقي کارونو ترڅنگه د لوړو تحصيلاتو لپاره زمينې هم لري . آيا د افغانستان د علومو اکاډمی په چوکاټ کې داسې امکانات نشي ميسريداى ؟

**ځواب** : زما په پوهه ، ډير سنه استاد بايد ډير سنه زده کوونکي وي . هر انسان له زانگو نه تر گوره پورې لا زياتې او ژورې زده کړې ته ضرورت لري . د اکاډمی علمي کدر ته بايد د تجربې د غني کولو او په مربوطه ځانگه کې د ميتود له انکشاف سره د اشنا کيدلو په خاطر خارج ته د تللو اسانتياوې برابرې شي . د اکاډمی غړي بايد اکثر هغه کسان وي چې لوړ تحصيلات يې کړي وي او په خپله ځانگه کې د ريسرچ کولو صلاحيت ولري . هسې نه چې اکاډمی ليسانسه گان جذب کړي ، بيا يې د ماستری لپاره خارج ته وليږي او بيا يې د ډاکتری لپاره پسې واستوي . دا کار له هر اړخه ناسم دی . د افغانستان د علومو اکاډمی به پخوا څيړونکي د ريسرچ په پلمه د تفريح لپاره شوروي اتحاد ته ليږل او توقع يې درلوده چې دغسې سفرونه به شوروي اتحاد ته د څيړونکو خوشبينی زياته کړي . په راتلونکي کې بايد دا کار په مسؤولانه توگه د يوه اکاډميك ضرورت په اساس ترسره شي .

**پوښتنه** : د افغانستان د ابتدايي او منځنيو تعليماتو د بيا احيا لپاره بايد څه وشي ؟

**ځواب** : د ابتدايي او منځنيو تعليماتو د بيا احيا لپاره بايد پخواني ښوونځي له سره فعال شي . په ځينو ځايونو کې د دې امکان شته چې حتیٰ په ورانو شوو ښوونځيو کې هم تدريس ته

دوام ورکړ شي . ما پخپله شپږ کاله د یوه چنار د ونې لاندې د
شګو پر فرش مکتب ویلی دی . زما د ټولګي ملګري ځینې تر
ریاستونو او مدیریتونو هم رشیدلی دی . نو په دې برخه کې
زیات تعلل نه دی په کار . د تعلیمي نصاب ، درسي کتابونو ،
مسلکي او حرفوي ښوونځیو د جوړولو په برخه کې باید د ښوونې
او روزنې د متخصصانو او په خاصه توګه د یونسکو همکاری
وغوښتله شي . البته ، یوې خبرې ته باید اشاره وشي چې کارونه
په پیسو کیږي خو زموږ په هیواد کې تعلیمي چارې په لږو پیسو
هم پرمخ بیول کیدای شي . د دې لپاره چې له جنګي کلتور سره
مبارزه وکړو ماشومان او ځوانان باید راغونډ کړو او ښوونځیو ته
یې ولیږو . که هغوی سیستماتیکه زده کړه هم ونشي کړای یو څه
سواد خو به زده کړي ، له بیځایه ګرځیدلو څخه خو به خلاص شي،
یو څه خو به تر دسپلین لاندې راشي . د ودانیو خرابي د کتابونو
او ښوونکو کمبود ، د تجهیزاتو نشتوالي باید د پلمې په توګه
رامنځ ته نشي . پروا نه لري که تر یو څه وخته ماشومان او
ځوانان د ونې تر سیوري لاندې د شګو د پاسه درس ووایي ، که
کتاب نه وي په کاغذ یو څه ولیکل شي او ځینې ګټور معلومات
ورباندې حفظ کړي . مقصد دا چې تعلل جواز نه لري .

**پوښتنه : د وروستیو کلونو جنګونو ډیر ماشومان د مکتب له سن نه ایستلی دي ، د دغسې ماشومانو لپاره څه ډول اقدامات په کار دي ؟**

**ځواب :** د ماشومانو لپاره مکتب تر ټولو ښه ځای دی خو د هغو هلکانو لپاره چې د مکتب له سن نه وتلی دي باید له ډول ډول اقداماتو څخه استفاده وشي . څرنګه چې د دغسې ځوانانو

Serial No. 97-

# A collection of Essays regarding Human Rights, and the current crisis in Afghanistan

By

M. Siddiq Rohi

Published

By

The Writers Union of Free Afghanistan (WUFA)

Peshawar 1996-

Copies 2000-

موجوديت په اوسنيو شرايطو کې ډېر خطرناک ثابتيدلی شي دولت بايد د هغو د پرابلمونو د حل کولو لپاره يوه مستقله او باصلاحيته اداره تأسيس کړي . زما په فکر ، نوموړې اداره بايد د حياتي سواد کورسونه جوړ کړي ؛ د حرفو د زده کولو ورکشاپونه تأسيس کړي ؛ قانوني عمر ته د رسيدلو ځوانانو لپاره په خارج کې د کار قرار دادونه وکړي ؛ د دولت په ساختماني چارو کې يې مشغول وساتي ؛ په نظامي تعليماتو کې يې شامل کړي ؛ او موقع ورنه کړي چې بيکاره پاتې شي ځکه د بيکاره سړي ماغزه د شيطان ځاله ده .

پوښتنه : اوس د افغانستان د تعليم او تربيې په سيستم کې څو ډوله نصابونه رواج لري ، د دې تعدد منفي اثرات به څه وي ؟

ځواب : د دموکراسی د قوام او ( decentraliza-tion ) په شرايطو کې د تعلیمي نصاب تعدد بې ګټې نه دی او د کنفورميزم مخالفان يې خوښوي خو د افغانستان په شرايطو کې د تعليمي نصاب تعدد به قومي ، سمتي ، ژبني ، مذهبي ، او فرقه يې اختلافونه تشديد کړي ؛ پردي لاسونه به د ښوونځي او روزنې حريم ته راوغځيږي او ملي يووالي ته به سخت زيان ورسوي . ښه تعليمي نصاب هغه دی چې د زده کوونکو ذهني ، اخلاقي ، بدني ، معاشي ، روحياتي ، او ايستيتيکي اړتياوې په پام کې ونيسي ؛ شاګرانو ته معلومات ، مسلکي مهارت ، او ښه سلوک ورزده کړي . ښه درسي کتابونه د هيواد د ترقی او سوکالی ضمانت کوي .

۱۹۹۵ اکتوبر ۲۵

يادونه : دا ليکنه د وفا جريدې د پوښتنو په ځواب کې دوی تهيه کړې وه .



پاکستان ، ازبکستان ، تاجیکستان ، هند ، عربستان سعودی وبعض اعضای کنفرانس اسلامی درباره‌ء وضع فعلی وآینده‌ء افغانستان موقفها وموضعگیریهای مختلفی دارند . بسیاری از افغانها بدین باور استند که سرچشمه های جنگهای داخلی در خارج از کشور قرار دارد . چنانچه برخی از این کشورها در فکر مسلط ساختن یك حکومت دست نشانده باشند ، گمان میکنم اینان سجایای ملی افغانها را به صورت درست درك نکرده باشند . حکومتهای دست نشانده دوام نمیکند ، حتی امکان دارد همان حکومت دست نشانده « بلای جان » بادار خود شود .

٤ – اعلیحضرت محمد ظاهرشاه ، پادشاه سابق افغانستان :

در روزهایی که رژیم کابل پالیسی آشتی ملی را اعلام نموده بود ، روزی در مندوی برنج فروشی شهر کابل ماش وقروت میخریدم . دکانداری به آهسته گی به من گفت : شما شخص تعلیمیافته معلوم میشوید اجازه بدهید از شما یك سوال بپرسم : میگویند ظاهرشاه به افغانستان میآید ، کجاست لشکر او که از او دفاع نماید . من در پاسخ گفتم : من هیچ وقت عسکر نبوده ام ولی اگر ظاهرشاه بیاید من بااین موی سفید خویش عسکر اعلیحضرت میشوم . او گفت : من هم عسکر اعلیحضرت استم . او به من دست داد هر دو خندیدیم .

خوب ، این که یك خاطره بود ومیدانم که از نگاه علم احصائیه بر آن کدام فرضیه مرتب نمیگردد ، ولی آمارگیری شهید دکتور مجروح وسفر اخیر جنرال سردار عبدالولی به بعض مناطق مسکونی افغانها شواهد برجسته‌ء محبوبیت پادشاه سابق

افغانستان دربین مردم است . هرگاه از این محبوبیت پادشاه سابق در امر تأمین صلح در کشور بهره برداری نشود ، مسؤولیت آن به دوش محافل روشنفکر ودموکرات افغانها ومدعیان صلح ودموکراسی به سویهء بین المللی خواهد بود . آنانی که جانبدار یك صلح عادلانه وواقعی ، حکومتهای انتخابی ، اصول وارزشهای دموکراسی آزادی علوم وفرهنگ ، اتحاد ملی ، عمران وترقی کشور باشند نمیتوانند آنها را در پهلوی جنگجویان تاریك اندیش ومستبد دریافت نمایند . پُشتیبانی از پادشاه سابق به معنای طرفداری از صلح واقعی ، وحدت ملی ، اسلام روشنفکرانه ، وا، شهای دموکراسی میباشد . بی تفاوت ماندن در همچو موارد . هوم بی تفاوت ماندن در برابر ارزشهای متعالی وصیقل شده میباشد .

## ج - کدام یکی از طرق متذکره برای عملی شدن چانس بهتر دارد ؟

۱ - چنان که دیده شده تنظیمها چندین بار باهم توافق کردند که در کشور حکومت اسلامی را به وجود بیاورند ولی مؤفق نشدند وبه جای آن به کارهای مانند کشتن ، چور وچپاول ، اختطاف وتجاوز برناموس مردم بیدفاع ، از بین بردن مظاهر تمدن وفرهنگ ، تخریب منازل وعمارات ، وامثال آنها دست یازیدند وبعضی کشورها ومحافل ذیدخل سعی دارند تشکیل حکومت در انحصار همین تنظیمها باشد . البته ، در این آواخر دولت پاکستان بر پالیسیهای گذشتهء خود تجدید نظر نموده ، برای نخستین بار موانع دِر راه سهمگیری پادشاه سابق افغانستان را از میان

برداشت . هنوز نمیتوان در این باره چیز بیشتری گفت . ولی علایمی موجود است که پاکستان نمیتواند بر پالیسی گذشتهء خود پافشاری نماید . باتغییر شرایط تاکتیکها نیز تغییر میکنند .

۲ - در شرایط فعلی ، طرفین جنگ عبارت اند از قوای مستقر در شهر کابل وپغمان ومخالفین آنان ( یعنی گروه طالبان وشورای همآهنگی ) . به نظر میرسد که برای چیره شدن یکی از طرفین مخاصمه وقت زیادی لازم باشد ، زیرا بسیاری از شهرها امروز به دست یکی وچندی بعد به دست دگری میباشد . دراین بحبوحه شاید حوادث پیشبینی ناشدهء دگری به وقوع پیوندد .

۳ - من نمیدانم چه وقت سیاست از ماکیاولیزم فاصله میگیرد ولی فعلاً ماکیاولیزم برهمه جا مسلط است . از کشورهای خارجی باید توقع زیاد نداشت . منافع ملی تعیین کنندهء سیاست است . تصور میکنم برخی از کشورهای ذیدخل که توقع داشتند از جنگهای داخلی افغانستان بهرهء شیر به دست آورند فعلاً بر بهرهء شغال هم قناعت داشته باشند . ادامهء جنگ داخلی در افغانستان به نفع هیچ یکی از حامیان خارجی جنگجویان نیسنت . شاید گردانندگان سازمان ملل متحد اجازه ندهد که کشوری به قیمت کشور دگری فربه شود . اگر قرار باشد که نقشهء سیاسی منطقه دست ناخورده بماند بهتر خواهد بود که کشورهای ذیدخل از دخالت دست بکشند ، زیرا چیزی به دست آورده نمیتوانند .

٤ - مردم افغانستان از جنگ خسته شده اند وطرفدار یك راه حل سیاسی میباشند . ملاقاتهای محمود مستیری نمایندهء سرمنشی ملل متحد بااقشار مختلف جامعهء افغانی این واقعیت

را برملا ساخت که اکثریت قاطع افغانها آرزو دارند باتدویر لویه جرگه جنگها را خاتمه بخشیده ، زمینه را برای حکومتهای انتخابی مساعد سازند . سازمان ملل متحد باید چنان میکانیزم را جستجو نماید که نمایانگر اراده‌ء ملت بوده وانحصارگران را به صلح وقبول اراده‌ء ملی راضی سازند . به نظر میرسد که بالاخره افغانها به وساطت سازمان ملل متحد به صلح دایمی دست خواهند یافت . راه بهتر وعملی تری از آن سراغ نمیشود .

۵ - علی الرغم دسایس بعضی از سازمانهای داخلی وتفتین برخی از کشورهای خارجی افغانها از استقلال ، تمامیت ارضی ، اتحاد ملی ، تاریخ وفرهنگ مشترك خویش دفاع نموده اجازه نمیدهند که بخشهایی از کشور تحت نفوذ بیگانه گان قرار گیرد . روح مشترکی که در طول هزاران سال در پیکر این سرزمین باستان ایجاد گردیده به این آسانی وبه این زودی از پیکر خود - یعنی افغانستان عزیز - جدا نمیگردد .

نبشت ، متأسفانه مقاله های شان که در کابل به چاپ رسیده بودند به دسترس قرار نگرفت ، تنها مقاله های شان دراین مجموعه گنجانیده شد که در دیار هجرت نبشته اند . مقاله های که در کابل نبشته اند نکات بسیاری جالب دربارهء وضع حال وآیندهء افغانستان دارد که متأسفانه ما به دریافت آن مؤفق نشدیم .

مقالات حاضر نیز هر یك آن خواندنی ودر جایش مورد استفاده تواند بود ، ما به همین مقصد این مجموعه را به نشر سپردیم تا هموطنان عزیز ما از آن بهره گیرند .

بااحترام

اتحادیهء نویسنده گان
افغانستان آزاد

# فهرست




کاندیداکادمیسین محمدصدیق روهی

# جنگ داخلی افغانستان چگونه پایان خواهد یافت

۱۳۷۵

# جنگ داخلی افغانستان
# چگونه پایان خواهد یافت ؟




نویسنده

کاندید اکادمیسین محمد صدیق روهی

۱۳۷۵

# معرفی کتاب





نام کتاب : جنگ داخلی افغانستان چگونه پایان خواهد یافت ؟

نویسنده : کاندید اکادمیسین محمد صدیق روهی

ناشر : اتحادیهء نویسنده گان افغانستان آزاد

مهتمم چاپ : محمد ظاهر بابری

تعداد چاپ : ۲۰۰۰

سال چاپ : ۱۳۷۵ هـ ش مطابق ۱۹۹۶ ع

جای چاپ : تهاپ پرنترز - پشاور

کمپوزر : سید حسین پاچا

# پیش سخن

هیجده سال واندی میشود که مردم مسلمان ومظلوم افغان در آتش جنگ ویرانگر میسوزند .

این جنگ همه هست وبود مادی ومعنوی افغانها را به نابودي کشاند وکشور را به ویرانه وآبادیهای آن را به خاك توده مبدل ساخت .

جنگ ویرانگر که هنوز هم شراره های آن از کنج وکنار به مشاهده میرسد میلیونها کشته به جا گذاشت وبه همین تعداد را معیوب ابدی ساخت ، که شماره‌ء بیشتری از معیوبین هیچ کاری کرده نمیتوانند وبار دوش جامعه خواهند بود . افزون برآن لشکری از یتیمان وبیوه ها را در داخل کشور وهمینسان در دیار هجرت

همین جنگ فرسایشی ایجاد کرده است .

پس از سقوط رژیم سابق توقع چنان میرفت که وضع داخلی کشور به نفع مردم رنجدیده وبه ماتم نشسته‌ء افغانستان بهبود خواهد یافت ، آواره گان دوباره به میهن شان برخواهند گشت وتبجیلی از شهدای راه آزادی وغازیان آن صورت خواهد گرفت وحکومتی در کشور حکم خواهد راند که آراسته با موازین ملی واسلامی باشد . اما باصد دریغ بایستی گفت که وضع نه تنها بهبودی نیافت ، بل برتعداد کشته شده گان ، معیوبین وآواره گان افزود . آنچه از رژیم گذشته وچپاولگران خارجی باقی مانده بودند ، همه دراین دوران به یغما برده شد .

تمام سیستم کشوری ولشکری افغانستان برهم خورد ؛ دست درازی اجانب نسبت به هروقت دگر فزونی یافت وگروههای جنگجویان که از سوی اجنبیان حمایت میشوند ، طوری بین هم افتادند که کشور را دچار چنان بحران هولناکی ساخت . که برون رفت از آن تا هم اکنون چاره جویی نشده است . کشور ومردم آن تمام مصایب این بحران را به گوشت وپوست شان لمس میکنند . بحران تمام نهادهای فرهنگی را به رکود مواجه ساخته است وستیزه گری با نهادهای فرهنگی وخواسته های امروزین مردم آغاز گردید .

حقوق بشری زنان ، مردان ، پیران وجوانان ونوباوه گان همه پا مال ولگد کوب شد . بر دشواریهای سفر در داخل وخارج کشور افزوده گشت ، حقوق تعلیم وتربیه وکار در اکثر حصص کشور از زنان گرفته شد وقانون مدنی یکسره از کشور رخت بست ، تفنگ وزور گویی جان آن را گرفت .

درچنین اوضاع واحوال کشور قلم به دستان ، فرهنگیان وآنانی که از دانش سیاسی واجتماعی بهره یی داشتند ، از راه قلم به مبارزه برخاستند ودر ارتباط به بحران جاری کشور به نبشتن مقالات ، مضامین پرداختند وگفت وشنودهایی را با رسانه هایی گروهی انجام دادند .

راههای برون رفت از بحران را نشاندهی کردند ؛ ابعاد گونه گون بحران را به بررسی نشستند ؛ مداخله های اجنبیان را تفسیر وتحلیل کردند ؛ از حقوق بشری افغانها دفاع کردند وبر بادی میهن وکشته شدن وآواره گی ودربه دری همیهمنان اشك ریختند. تمام این نبشته ها که در رسانه های گروهی مربوط به افغانها ویا برای افغانها نشر شده اند ، هریك در جایش غنیمت به شمار میآید لازم مینماید که مؤسسات فرهنگی چنین نظریه وآرای پراگنده را گردآوری نموده در مجموعه ها چاپ نمایند ، تا باشد از نکته ها وگفته های این نبشته ها در رفع بحران هولناك فعلی سودی به دست آید .

روان شاد استاد محمد صدیق روهی از چندین سال به اینسو درباره، بحران هولناك کشور در داخل وخارج از آن مقالاتی نبشته بوده اند ویا هم مصاحبه های انجام داده بودند .

اتحادیه، نویسنده گان افغانستان آزاد بانظر داشت پالیسی نشراتی خود از فراوان نبشته ومصاحبه سیاسی او صرف ۸ آن را به گزینش گرفت که دراین مجموعه تقدیم به خواننده گان میشود .

روان شاد روهی در دوران مهاجرت وهمچنان طی چند سال اخیر در کشور چندین مقاله درباره، وضع دردناك کشور ومردم آن